# کندهار

دیني ، علمي ، ادبي ، اجتماعي ، تاریخي
دکندهار د اطلاعاتو کلتور ریاست دوه میاشتنۍ خپرونه

په حقیقت کی تربل هرچا زیات زه پخپله
داد کیرنی ته اړتیا لرم څکه چی زما لپاره
دمرحوم الحاج مُلّا محمد ربّانی دوفات
غمجنه پیښه دیره دردونکی ده خومونږ
دخدای په قضا اورضا ایمان لرو

درئیس الوزراء الحاج ملا محمد رباني پر مرینه
د عالیقدر امیرالمؤمنین د تعزیت پیغام



زمونږ د اسلافو دعزت او دعظمت
یوائځي سبب جهادؤ اوسني
مسلمانان که عزت او عظمت
غواړي د جهاد لاردي ونیسي

په پیښور کې د دیوبند کانفرنس
ته دشیخ اسامه بن لادن پیغام

دهند په نیمه وچه کی له دیرو خندونو سره د دارالعلوم
دیوبند په برکت دیني علوم او اسلامی اقدارتر
اوسه لاژوندی پاته دی.

د دیوبند کانفرنس ته دعالیقدر امیرالمؤمنین پیغام

ملا اغا جان معتصم
دمالیې وزیر

زمونږ تر ټولو زیاته بودجه
د تعلیم او تربیې اوبیا
ودانولو په چارو کی په
مصرف رسیږی






اوسنی هلیه مند هیلمند
وتیری پاتک سالاری ته

راپورتاژ




بسم الله الرحمن الرحيم

## د بتانو د ماتولو په فرضيت باندی د قرانکريم دلائل

خدا "ج" وای " و اذ قال ابراهيم لابيه اذر اتتخذ اصناما الهه انی اراك و قومك فی ضلال مبين .

ژباړه : کله چې ابراهيم خپل پلار اذر ته وويل ايا تا له بتانو خدايان جوړ کړي دي . زه تا او ستا قوم په څرګنده ګمراهی کې وينم .

خدای" ج " وايي : و تا الله لاکيدن اصنامکم بعد ان تولو مدبرين .

ژباړه : او قسم دی په خدای چې خامخا به ستاسي د بتانو ماتولو ته څه تدبير جوړ کړم له هغه وروسته چې تاسو بتانو ته شاه کړی . او ميلی ته روان شي بل ځای فرمايي : فراغ الی الهتهم فقال الاتاکلون ما لکم لاتنطقون فراغ عليهم ضربا باليمين . فاقبلو اليه يزفون قال اتعبدون ما تنحتون ......

ژباړه : پس ابراهيم عليه السلام د دوی خدايانو ته پټ راغی او ورته ويې ويل چې ايا تاسو خوراك نه کوی ( دا د ميلي ورځ وه او د بتانو په خونه کې ډول ډول خوراکونه ايښی وو ) په تاسو څه شوي دي چې خبري نه کوي ( او ماته ځواب نه راکوی ) نو د هغو د وهلو او ماتولو له پاره پټ ورننوت او په ښي لاس يا قسم سره يې بريد پری وکړ . پس مخامخ شول نمروديان چې منډي يې راوهلی ( څو ابراهيم ونيسی ) ابراهيم هغوی ته وويل : ايا تاسو د داسی څيز عبادت کوي چې په خپلو لاسونو مو له کانو څخه تراشلي دي .

او خدای " ج " له موسی عليه السلام څخه د سامري په کيسه کې حکايت کوی وايي : و انظر الی الهك الذي ظلمت عليه عاکفا لنحرقنه ثم لنسفنه فی اليم نسفا .

ژباړه : ته دی هغه خدای ته وګوره چې ته يې په عبادت کې محکم ولاړ وي . خامخا به هغه موږ وسوځوو او بيا به يې په سيند کې باد کړو او پخي پخي به يې کړو .

او رسول الله صلی الله عليه وسلم چې د کعبی شريفی بتان ماتول نو دا ايت شريف يې تلاوت کاوه . قل جاالحق وزهق الباطل . ژباړه : ته ورته ووايه ای پيغمبره چې حق راغی او باطل ختميدونکی دی .






# کندهار

دیني ، علمي ، ادبي ، اجتماعي ، تاریخي
دوه میاشتنی خپرونه

د کندهار اطلاعاتو او کلتور ریاست دوه میاشتنۍ خپرونه
د ۱۴۲۱ هجري سپوږمیز کال د ذالحجه او ۱۴۲۲ د محرم الحرام
میاشت یا د ۱۳۸۰ هجري لمریز کال د ورى او غويي میاشت

## کندهار مجله

د تاسیس کال د وري میاشت ۱۳۳۹ لمریز کال
دوهم ځل خپریدنه د سلواغی میاشت ۱۳۷۷ لمریز کال
پرله پسې ځوارلسمه ګڼه
د ځلرم کال لمړۍ ګڼه

## اداره

مسئول مدیر ملا سلیمان آغا " بهیر "
کتونکي ډله
۱ ملا عبدالحی " مطمئن "
۲ محب الله " اسحاقی "
۳ عبدالواسع " هڅیال "




## پته

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست د مجلې دفتر
ټلیفون. فکس ۰۰۹۳-۳-۲۱۰۴۴ یا ۰۰۹۲-۸۱-۸۳۷۷۰۷
په پاکستان کې
پوسټ بکس شمیره ۱ (بوا چمن)

## ګلنی ګډون

په کندهار کې ۹۰۰۰۰ افغانۍ
په نورو ولایتو کې ۱۲۰۰۰۰ افغانۍ
په پاکستان کې ۲۰۰ پاکستانی کلداري
په لیرې هیوادونو کې ۵۰ امریکائي ډالره
د یوې ګڼې بیه ۲۰۰۰۰ افغانۍ یا ۲۰ کلداري
زده کونکو ته د تصدیق په لرلو سره په نیمه بیه ښاندي ورکول کیږي

## تخنیکي چارې

کمپوز او ډیزاین : د الامارت کمپیوټر اداره
کمپوزر : میر روح الله " سادات "
د چاپ ځای : د کندهار امارتي مطبعه

## لیک لړ

سرلیک — مخ



د پښتي شرحه : په لومړي مخ کې د دیوبند مدرسه او د هلمند عصري منځنی مدرسه .
په څلورم مخ کې د هلمند مرکزی جامع مسجد او د هلمند د تعلیم و تربیی ریاست ودانی




# سل دي ومره يو دي مه مره

مرګ هغه یواځنی مسئله ده چې د مذهبی او غیر مذهبی علماؤ پوهانو او حتی د ټولو انسانانو تر منځ متفقه ده . خو لکه څنګه چې انسانان د رنګونو ، بدنونو او فکرونو په لحاظ متفاوت دي همداراز یې استعدادونه هم یو شان ندي . ځینی انسانان دومره کم ظرفیته وي چې د ځان په جوړونه کې هم پاتې راشي . خو ځینی نور یې بیا د ټولنی د معنوی جوړښت ربښتونی معماران ثابت شي هغه د ارواښاد الفت صاحب خبره چې :
ډیر سفاوت شته په انسان کې د معنا به لحاظ ، واړه مصروف دي ځینی ځان ځینی جهان جوړوي .

نو له همدې خایه ده چې په ټولنه کې په ژوند هم د هر انسان اغیز او مقام جلا وي او مړینه یې هم ټولنی ته په جلا جلا بیو تمامیږی په چا به کور کلی رنګیږی ، په چا رنګیږی لیری وطنونه .

افغان غیرتی ولس د تاریخ په اوږدو کې وخت په وخت د جهادی ، علمی او ملي هستیو د مړینی له کبله د زړونو ژور ټپونه لیدلی دي که څه هم دوی د دود له مخی مړه بلل شوي پر جدای یې اوښکی توی شوی . زړونه پرې دردمند شوی . خو دوی بیا هم د اجتماعي درد او احساس په برکت ځانونه په معنوی ژوند داسې ژوندي ساتلی چې یادونه او کارنامې یې هیڅوک هم د تاریخ د زرینو پاڼو څخه نشی محوه کولی .

*ثبت است برجریده عالم دوام ما*

زموږ د نومیالیو اکثره برخه هغه اتلان تشکیلوی چې د یرغلګرو په وړاندې یې نه یوازی دا چې ځانونه سپر کړی بلکی په سالمه توګه یې د ولسونو قیادت سمبال کړي . له پلرونو او نیکونو څخه په میراث ورته پاتې درونډ معنوي امانت ( اصالت او خپلواکی ) یې راتلونکو نسلونو ته په خپله اصلی بڼه سپارلی . د دې درونډ پیټی اوچتول که څه هم دوی ته د ژوند د ټولو خوږو په بیه پریوتی ، خو د ولسونو او تاریخونو زړونو ته یې لاره موندلی د بدنونو سره یو ځای د ولسونو پر زړونو هم حکومت کړی .

د داسې اقدارو څخه د محرومیت وروستی ټکه چې د کفری استعمارګرو لخوا پر ځپل شوی افغانی ټولنه راپریوته هغه د ارواښاد رئیس الوزرا الحاج ملا محمد ربانی بوږنونکی مړینه وه .

ارواښاد ملامحمد ربانی د هغو سرسپارلو د سالارانو دله کې وو چې د بیدریغه ځانی او مالی قربانیو په برکت یې په شلمه پیړی کې د هغه نړیوال ښامار ( شوروی اتحاد ) له جدی خطر څخه نه یوازی پاته نړی بې غمه کړه بلکی د ده له ځیتی څخه یې هضم شوی ولسونه هم راوېستل .

ارواښاد ملامحمد ربانی بادیانته مسلمان او اصیل افغان وو ، له وړوکوالی څخه په اسلامي او افغاني روحیه روزل شوی وو .

له همدې امله وو چې په هیواد کې د سره طاغون د خوریدو سره سم اسلامي او ملي احساس د کتابونو کت کولو ته اړ کړو ، او تنکی ځواني یې د سرو لښکرو سرو مرمیو ته سپر کړه

په هیواد کې دغوایی د کرغیړنی او بدنامي کودتا څخه نیولی او په هیواد کې د ګوډاګی رژیم تر سقوطه یې په نه ستړی کیدونکی ډول د مقدس جهاد سنګرونه ، نه یوازې په خپله تاوده وساتل بلکې د هیواد مجاهد سربښندونکی یې تر اخیره رهبری کړل .

ارواښاد ملامحمد ربانی هره لحظه د خدای " ج " په لار کې سپيڅلی شهادت ته په انتظار وو ، په بیلابیلو وختونو او عملیاتو کې پوره شپږ واره ټپی شو خو تقدیر به یې د سختو ټپونو سره سره د ژوند فیصله کړی وه .

په هیواد کې د کمونستی رژیم له سقوط نه وروسته ارواښاد الحاج ملا محمد ربانی د نورو مجاهدینو په څیر په هیواد کې د یوه خپلواک او اسلامي نظام د ټینګښت امید لرلو ، لیکن له بده مرغه د ملیونونو افغانانو په شان د ارواښاد هیلی هم خړو او بوبوړې ، نه یوازې دا چې دغه عظیم ارمان تر سره نشو بلکه د هیواد هره برخه په سره اور بدله شوه .

ارواښاد پدې حساسو او سختو شپو د داخلی اختلافاتو ښکار خو خود نشو بلکې د یو زیات شمیر دینی علماو جهادی قوماندانانو ، قومی سپین ږیرو سره یوځای یې د قدرت د اور په مړ کولو کې په زړه پوری هڅې وکړې ، خو متاسفانه چې په قدرت مینانو یې په اذان روژه ماته نکړه خو کله چې د هر اړخیز فساد اوج ته د رسیدونه وروسته د تاریخي کندهار څخه دینی طالبانو د عالیقدر امیرالمؤمنین په مشری د هیواد د نجاتی قوې په حیث تبارز او قیام وکړ نو ارواښاد الحاج ملا محمد ربانی یې دمخکښانو په ډله کې ودرید ، کله چې زمونږ هیوادوالو خپل اصیل بچیان "طالبان " د اسلامی نظام د استحکام ، د سرتاسري سولې د ټینګښت ، د ملی وحدت د تامین په غرض استقبالول نو ارواښاد به په اکثره سیمو کې د عالیقدر امیرالمؤمنین نیابت کولو .

ارواښاد د ستاینی وړ د ځانګړو صفتونو خاوند وو چې دیانت ، تقوی ، امانت ، حوصله ، تدبیر ، یې د بیلګی په توګه یادولی شو .

ارواښاد د کابل تر سقوطه پوری د اسلامي اردو د مجاهدینو سالاری وکړه ، او په کابل کې د یوې مرکزي اداری د اعلان نه وروسته د سرپرستی شوری د رئیس او بیا د رئیس الوزرا په توګه وټاکل شو ، د ارواښاد د عالی اخلاقو صمیمیت او تدبیر څخه هر کشر او مشر قلبا متاثره وو ، له بد مرغه چې صحت یاری ورسره ونکړه ، په داخل کې پر تداوی برسیره عربی اماراتو ، پاکستان ، او سعودیه ته یې د تداوی لپاره بیابیا سفرونه وکړه ، تر کومه وخته یې چې په دنیا کې رزق پاتی وو د یوه بادیانته مسلمان په توګه یې ژوند وکړ .

خو بالاخره تقدیر د دې لوی هستی څخه د افغان زوریدلی ولس د محرومیت فیصله وکړه او د ۱۴۲۲ هـ ق کال د محرم الحرام د میاشتې په ۲۲ مه نیټه یې روح خپل مالک ته تسلیم او د ابدیت لاره یې ونیوه .

د ارواښاد ملامحمد ربانی غمجن وفات هغه ژور زخم دی چې د صبر پرته بل هیڅ قسم داروبې نشی رغولی د ارواښاد وفات د افغانانو لپاره هغه خلاده چې خدای خبر چې په اسانه یې ډکه کړای شي .

خو مهربان خدای " ج " ته به سوال کوو چې دې کړیدلی ولس ته د ارواښاد ملا محمد ربانی نعم البدیل او زړونو ته یې صبر جمیل ورکړی .

او د درانه ارواښاد ابدی سفر هم بی خطره او له خوښیو ډک کړی .

آمین

# د دارالعلوم دیوبند د یونیم سل کلنو خدمتونو د کانفرانس ګډون کوونکو ته



## د عالیقدر امیرالمؤمنین



## پیغام

الحمد لله رب العالمین والصلوة والسلام علی قائد المجاهدین وعلی اله وصحبه اجمعین .

محترمو علماء کرامو . د دغې پرتمینې غونډې ګډون کوونکو ، او د نړۍ ټولو مسلمانانو !

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته !

د محمدي امت په دې حساسو او بوږنوونکو شرائطو کې د دا ډول لویو غونډو جوړول سره له دې چې کتور او په زړه پورې کام دی . مسلمانانو ته دا موقع ورکوي چې په خپلو ربړو او مشکلاتو سره خبرې وکړي الله تعالی دې د جمعیت علماء اسلام منسوبینو ته د دغې سترې کارنامې اجرونه ورکړي .

فعلي شرائط ایجابوي چې د مسلمانانو په موجوده ستونزو باندې باید داسې نړیوالې غونډې وشي . د دارالعلوم د یو بند خدمتونه له چا څخه پټ نه دي د هند په نیمه وچه کې له ډیرو خنډونو او موانعو سره سره د دارلعلوم د یو بند په برکت دیني علوم او اسلامي اقدار تر اوسه ژوندي پاته شوي دي او اسلامي نړۍ ته یې داسې د کار او لوړ همت شخصیتونه وړاندې کړي دي چې د هغو علمي ، اصلاحي دعوتي او .. کارنامې د هیرولو نه دي .

د غونډې برخوالو . مسلمانانو وروڼو !

> **د کفري نړۍ تیری او له مسلمانانو سره له کبره ډک چلند اوج ته رسیدلی دی او د نړۍ په هره برخه کې د مسلمانانو سره له تبعیضه ډک چلند کیږي .**

کفري نړۍ د ملګرو ملتونو تش په نامه نړیواله اداره د خپلو اهدافو لپاره استعمالوي دغې ادارې که کله هم د مسلمانانو په ګټه کومه پریکړه کړې وي خو هغه په کلونو کلونو د کاغذ پر مخ پاتې وي او نه عملي کیږي خو د دوی په ګټه مسائل په ډیره چټکه توګه عملي کیږي . د مسلمانانو نړیوال سیاسي موقعیت تقریباً د تحت الحمایه ګۍ درجې ته رسیږي او د نورو تر سیوري لاندې ژوند کوي دا په داسې حالاتو کې چې د مسلمانانو جغرافیایي موقعیت له اقتصادي نقطه نګاه نه ډیر په زړه پوري دي او د خامو موادو بې شمیره زیر مې لري خو له دې سره سره یې په ملل متحد کې دومره کمزوري حیثیت دی چې هیڅ کله هم د دوی ستونزو ته نشي درمل کیدای .

د کفري نړۍ اهداف او مقاصد څرګند دي هغوی اوس په نړۍ کې د اسلامي نظام پرته بل سیال نه ویني او له دې کبله خو دوی په افغانستان کې اسلامي امارت په هیڅ صورت نشي زغملای او اسلامي امارت د هیواد د پنځه نوي په سلو کې خاورې له ولکې سره سره بیا هم د حکومت پر ځای د ډلګۍ په نامه یادوي .

د افغان مجاهد اولس په زور او همت سره شوروي اتحاد رانسکور شو هغه شوروي اتحاد چې د امریکا او غربي نړۍ تر پولو پورې یې ځان نږدې کړی وو .

هغه شوروي اتحاد چې په ویتنام کې یې امریکا ته شرمونکې ماتې ورکړې وه .

هغه شوروي اتحاد چې منځنۍ اسیا یې هضم کړې وه .

او هغه شوروي اتحاد چې تودو اوبو ته د رسیدو لپاره یو ګام خمکه ورته پاتې وه په هغو شپو کې د نن په اصطلاح پیاوړې امریکا وجود په لړزیدو وو .

هلته یې د شکست په ترخو حلق تریخ وو او زمول وهلی ناست وو .

خو دې بې وسه ولس د خپل ځواکمن ایمان په برکت هغه کمونیزم په ګونډو کړ او شکست نه منونکی شوروی اتحاد یې د نړۍ له نقشې څخه محوه کړ او هغه انسانخوره بلا همدې افغانانو نابوده کړه او ګردې نړۍ ته یې نجات ورکړ د اسلام او کمونیزم په دې جګړه کې زموږ هیواد وران شو او له ډېرو درنو ستونزو او ربړو ورو سته دې مظلوم ولس په خپله خاوره کې د خپلې خوښې اسلامي نظام پلی کړ خو دې بې انصافۍ او جفا کارې نړۍ زموږ ټولې کارنامې هیڅ ویللې او اوس غواړي چې له خپلې دغې پواخته موخې څخه مو هم واړوي.

هغوی په دې جهادي تاتوبي افغانستان کې اسلامي حکومت په هیڅ صورت نشي زغملای. په افغانستان باندې د هغوی بې رحمانه بندیزونه او هغه هم د ملګرو ملتونو په چوکاټ کې دارا ښیي چې کفري نړۍ په ډېره سرتمبګۍ او تکبر سره د اسلامي امارت مخالف ته ملا تړلې ده او له اسلامي امارت سره د هغوی ټول مخالفتونه په هیڅ منطق ندې بنا. د دلیل او منطق د نړۍ دغوه لرونکي. د اصولو او پرنسیپ تش په خوله پلویان پوازې د زور په نیلي سپاره دي.

**مونږ له ټولې نړۍ سره د متقابلې همکارۍ او له اسلامي نړۍ سره د اخوت او ورورولۍ په فضا کې اړیکې ټینګول غواړو او هر چاته مو د سولې لاس اوږد کړی دی.**

زموږ په هیواد کې د همدې نړیوالو استعمارګرو په لاس د یو څه وخت لپاره د کورني جنګ او ورور وژنې اور په غرغړو شوی وو. دلته هغه پیښې رامنځ ته شوې وې چې زموږ د هیواد ځمکنۍ بشپړتیا یې په خطر کې اچولې وه. دلته ناروا او بې معنی جګړې روانې وې خو همدې امریکا او غربي نړۍ چې نن یې په افغانستان کې د جنګ د ختمولو او د افغانانو د بشري حقوقو د ساتلو د روغړنه چیغه پورته کړې ده مسلمانان ښه پوهیږي چې دا پوازې د خولې خبرې دي. دوی وو چې د افغانستان په سخته بده ورځ باندې یې غوږونه کاڼه کړي وه.

اما نن چې موږ اسلام په واقعي او اصلي بڼه عملي کړی او اسلامي امارت مو رامنځ ته کړی دي. امنیت مو ټینګ کړی او ورور وژنه مو له منځه وړې ده. د سولې د تامین لپاره مو زیاتې سپېڅلې ویني توې کړي او پدې هیواد کې مو یو داسې حکومت قائم کړ چې ټول ولس پرې خوښ دي او زیاته مینه او خواخوږي ورسره لري نو نړیوال یې کله د سخت دریزه اسلام او کله هم د طالبانو د تعبیر د اسلام په نامه د بدنامولو لپاره ډول ډول تبلیغات کوي

مونږ په ډاګه ویلای شو چې اسلامي امارت د افغانستان د ولس د خوښې حکومت دي چې زموږ د دې ادعا لپاره د مخدره موادو بندیز چې ټوله نړۍ یې مخنیوي ته حیرانه وه او شکایت یې کول ښه دلیل دي. سره له دې چې زموږ د هیواد ډېرو بزګرانو کوکنار کرل او پدې رنګ هیواد کې یې همدا دعاندانو لویه سرچینه وه خو چې کله اسلامي امارت د هغو په کرلو بندیز ولګاوه ټولو په یوه خوله زموږ خبره راسره ومنله. نړیوالو د دې پر ځای چې زموږ دغه ستر اقدام وستایي او په عوض کې یې له بزګرانو سره مرستي وکړي خپل زهرجن تبلیغات نور هم پسې زیات کړل

په هیواد کې زموږ امرونه او احکام په ډېره تیزۍ سره منل کیږي او زموږ د نظام هرې خبرې ته زموږ ولس لبیك وایي او یو څه بې لارې او غربي پلوه افغانان که مخالفت کوي هغه یو یا دوه فیصده هم ندي خو اوازه او پروپاګنده یې ځکه دومره لوړه او تیزه ده چې هغوی د همدې غربي نړۍ په غیږ کې ناست دي. غرب او امریکا خپله میدیا ورته وقف کړې ده.

موږ خپلو خلکو ته هغه نظام پلی کړي چې په هغه دوی ایمان لري زموږ اساسي قانون قرآني اصول دي او دا اصول د مومنانو ایمانیات دي. اسلامي امارت د هیواد او سیمې د سولې لپاره ډېرې ویني توې کړي دي او له نړۍ سره د اړیکو په ټینګولو کې یې له هرې ممکنې لارې کار اخیستی دی

مونږ په زغرده وایو چې اسلامي اصول هیڅ کله هم تر پښو لاندې کولای او په قرآني پریکړو باندې له هیچا سره سازش نشو کولای

زمونږ مظلوم ولسول روسي یرغلګرو ډیر ځورولی دي. انسانخوره کمونیزم زموږ هیواد په کنډواله بدل کړي. زموږ هیواد ویجاړ او کنډر پروت دي. زمونږ ولس شل کلنو جګړو زیات ځپلی دي. زمونږ مظلوم هیوادوال له ډیرو اقتصادي ستونزو سره مخامخ دي موږ غواړو چې خدای "ج" دا جګړې ختمې کړي او د هیواد په بیا جوړولو لاس پورې کړو او خپلو مظلومو هیوادوالو ته دا خپل رنګ کور کې بیرته ودان کړو. مونږ تر هر چا زیات سولې ته اړیو ځکه

نړیوال تروریزم موږ ته هیڅ نه دي راپریښي ، مونږ نړیوال کفري ځواکونه د خپلو هیوادوالو خدمت ته نه پریږدي ، مونږ دې ته نه یو خلاص چې د خپلو یتیمانو اوښکې پاکې کړو ، مونږ دې ته نه پریښودل کیږو چې خپلو کونډو او بوروته سرپناه جوړه کړو . مونږ له اسلامي نظام ، ازادۍ او حریت سره مینه لرو ، د اسلامي حکومت او ازادۍ لپاره مونږ د سرونو ورکولو ته تیار یو خو نړیوال کفر غواړي چې مونږ له خپل دغه هدف څخه تیر شو ، هغوی په خپلو دغو دښمنانه او بې رحمانه پلانونو سره غواړي چې زمونږ له سرونو څخه د ازادۍ مفکوره وباسي نو ځکه ویلای شو چې په اصطلاح د وخت زبر ځواکونه زمونږ خلاف سره یو شوي دي او په ډول ډول بهانو سره یې پر مونږ ناروا بندیزونه لګولي دي .

**د تروریزم په تور او د بشر د حقوقو د نه مراعتولو په پوچو نارو سورو سره یوازې مونږ نه بلکې هر ځای مسلمانان کړوي او سپکوي .**

تر پرونه پورې دي تش په نامه لویو ځواکونو د نړۍ مستضعف او کمزوري ولسونه زبېښل ، د هغوی هیوادونه یې مستعمرې ګرځولي وه . پرون لاروسانو ډیر هیوادونه تر خپته لاندې کړي وو او اوس یې هم د منځنۍ اسیا هیوادونه تر رواك لاندې دي .

څه موده وړاندې لویې برتانیې په نړۍ کې خپل استعماري جال غوړولي وو او د هند نیمه وچه یې تر زبېښاك لاندې کړې وه نن امریکا پر ټوله نړۍ دواك چلولو پلانونه جوړوي او مونږ پخپلو هیوادونو کې د خپلې خوښې دحکومتونو جوړولو ته نه پریږدي او د نړۍ د اهل ګولو په فکر کې یو ځای هم ولسونه په ارام نه پریږدي او د مسلمانانو په نابودۍ پسې خوېږي له یوه مخه را اخیستی ده . اسلامي نظام او جهاد له منځه وړل غواړي او د همدې هدف لپاره اوس هغوی ټول یو موټی شوي دي او تش په نامه د ملګرو ملتونو اداره د خپلو ګټو لپاره استعمالوي .

په ملګرو ملتونو کې اسلامي هیوادونو ته غړیتوب څه ګټه رسولې ده ؟

د هغوی کومه ستونزه د ملګرو ملتو له لارې حل شوې ده ؟

نو د مسلمان امت پدې ویزلې حالت باندې یو څه کول پکار دي په دې سختو حالاتو کې د مسلمانانو وحدت او یووالي ضروري دی او له دې بحران څخه د وتلو لپاره څه لارې چارې لټول پکار دي . د مسلمانانو لپاره دا ډول غونډې او اجتماعات ډیر ضروري دي څو په خپلو مسائلو ، ستونزو او دردونو باندې سر وغیږي

نن د نړۍ پر مخ مسلمانان د یوه امت په حیث اوسي دوی باید خپل اسلامي تشخص وساتي او پدې پوه شي چې مسلمانان ولې ارام ژوند ته نه پریښودل کیږي ؟

مسلمانانو د هیچا په هیواد تیری ندي کړي همدا نور حکومتونه دي چې په دوی تیری کوي . دا جګړې او شخړې چې رواني دي د مسلمانانو په هیوادونو کې دي او پر دې یې هیوادونو ته راغلي دي دوی په ارام نه پریږدي . زموږ په هیواد روسانو تیری وکړ موږ په هغو پسې نه یو ورغلي هغوی په موږ پسې راغلي وو . همداراز امریکا هم زموږ خاوره په کروز توغندویو وویشته . د فلسطین مسلمانان داراز په خپل هیواد کې کړول کیږي یهودیان د دوی سیمو ته ورغلي دي . په چیچنیا او کشمیر کې هم دا حال دي او هم په نوره ګرده اسلامي نړۍ کې داسې چلند کیږي .

نو په داسې حالاتو کې تر هر څه مخکې د مسلمانانو وحدت او یووالي ته اشد ضرورت دي څو له بده مرغه چې مسلمانان په خپلو منځونو کې سره لاس او ګریوان دي .

په یوه هیواد کې د جزئي اختلافاتو په وجه په لسګونو اسلامي ګوندونو جوړ شوي وي . دې تقسیماتو او جلاوالي په مونږ کې د امت د یووالي او د مسلمانانود ستونزو د حل کولو فکر وژلی دی . د یووالي لپاره پاخه ګامونه پورته کول پکار دي .

په پای کې یو ځل بیا هیله کوم چې زموږ مسلمان ، مظلوم ، سترې ، او محصور ولس چې د نړیوالو بد معاشانو له ګوابنونو سره مخامخ دي او د ایمان او اسلام په جرم کړول کیږي له خپلو دعاګانو مه هیروي .

په نړۍ کې د مسلمانانو د لازیات بریالیتوب په هیله :

والسلام علیکم و رحمت الله و برکاته

ستاسې وروړ د اسلام خادم

ملا محمد عمر "مجاهد"

# د دیوبند کانفرانس ته د شیخ اسامه بن لادن ورلیږل شوی

## پیغام

ثنا ده هغه الله تعالی لره چې فرمایي : ای مومنانو ! وویریږي له الله تعالی څخه په رینښتني خوف سره او منګولي ولګوي د الله تعالی په رسۍ ( قران ) باندي او مه سره جلا کیږئ .

او درود دي وي د الله تعالی په هغه رسول صلی الله علیه وسلم باندی چې فرمايي : ایا زه تاسی په هغه عمل خبر نکړم چې د روژې لمانځه او زکات څخه هم بهتر دي ؟ اصحابو وفرمایل : هو خبر مو کړه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : هغه خپل عمل منځی جوړښت او اصلاح ده ، بیشکه چې خپل منځی فساد خریونکی دي زه نه وایم چې فساد ویښته خریي بلکه فساد دین خریي .

تاسو نن دلته له مختلفو وطنونو ، لري لري منطقو او جلا جلا سیمو څخه راټول شوی یاست چې تر څو د هغه اسلام د وحدت ښکاروندویي وکړی په کوم کې چې جنس او رنګ اهمیت نلری سرحدات او بندرونه پکښې قیمت نلری تاسو نن دلته د دې لپاره چې تر څو د اسلام یو عظیم حکم پر ځای کړی چې هغه : د حق او اهل حقو د مرستی لپاره په حقه راټولیدل دي .

او بیشکه تاسو چې دلته په خپلو راټولیدلو سره هغه نړیوال کفري ځواک څوروي کوم چې ستاسو د راټولیدو او د اسلامي امت پر مسائلو باندي د بحث د مخنیوي لپاره په زرګونو لاري چاري لټوي .

ای د فضیلت خاوندانو !

زه دا کرښې تاسو ته لیکم او پدې فخر کوم چې تر اوسه په امت کښې داسې کسان شته چې له فساد څخه منع کول کوی او دا پداسی وخت کې چې زور زیاتی د ځمکی اکثره برخی لاندي کړي دي

ای د فضیلت خاوندانو : هغه دروند بار مو هیر نشي چې ستاسو په اوږو ایښودل شوي بیشکه تاسو د پیغمبرانو وارثان یاست او د خلکو مشران یاست او همدا ستاسو فتوا ګانی دي چې دوی راولاړسی او د هغه څه په رڼا کې عمل کوي چې تاسي ورته اشاره کوي او په رښتیا هم الله تعالی پر تاسي امتحان کوي هغه دا چې تاسو یې په داسي وخت کښې مبعوث کړی چې بغاوت پکښې اوج ته رسیدلی دي او مقدسات پکښې تر پښو لاندی شوی دی او جرم پکښې حلال ګرځول شوی دي او الله تعالی به له تاسو څخه پوښتنه کوي چې : په خپل علم مو څومره عمل کړی دي ای د فضلیت خاوندانو ! زه دا کرښې په داسې حال کښې تاسی ته لیکم .

چې زموږ د امت په جسم کښې د یوې ګوتې ځای هم داسې نه پیدا کیږي چې یا په زهرجن غشی او یا هم په تیره توره زخمي شوی نه وی .

زه دا کرښې تاسی ته په داسی وخت کښې لیکم چې : د ملګرو ملتونو او د هغه لوی نړیوال نظام تر سیوری لاندی وژنه روا کار دی آن تر دې چې په بې ګناه ماشوم هم څوك هیله نکوی او اسلامي مقدساتو ته پکښې سپکاوی کیږی دا هغه نظام دی چې متعصب کفار پکښې د ملیونو مسلمانانو د پناه کولو او محاصره کولو سرپرستی په غاړه

لری او پــه اوس وخــت کــې د کفـری نړی لخوا د مسلمان ضد پلانونو د عملی کولـو لپــاره برينــډه وســيله ګرځـدلی ده خو بيا هم شرم نلری او د بشر د حقوقو ناری سوری وهی حضرت رسول کرم صلی الله عليـه وسلم پـه هغـه حديث کـښې چـې بخاری روايـت کـړی فرمـيي . يوه ښځه پـه جهنم کـښې واچول شوه د هغی پيشو پـه وجه چې دغی ښځی تړلی وه او نه يې خوراك ورکړ او نـه يـې د ځمکـی د حشـراتو خوړلـو تـه پريښوله چې تر څو مړه شوله پورتنی حديث شريف پر يوې پيشو باندی د بنديز انجام بيانوی .

نو ای د خدای "ج" بندګانو !

تاسو د هغو خلګو په باب څه فکر کوی چې بنديزونو يې مظلوم مسلمان ولسونه د مرګ تـر سـرحده رسـولی دی .

ای لويه خدايه !

زه د دې خلګو له اعمالو څخه برائت او بـی زاری اعلانــوم د مظلومــو مســلمانانو ســره چــې ظالمانــه بنديزونـه پـرې لګيدلـی دي د نـورو مسلمانانو د مرستی د نـه کولـو او د غفلت له امله تا تـه معـذرت وړانـدې کوم .

ای د اسلام عالمانو ! دا زخمونه کـه هر څومره ژور هم وي او دا بحران کـه هر څو زيـات هـم وي خـو توکـل پـر خدای "ج" . خدای "ج" مهربانـه دي دا زخمونه به درمان شي الله تعالی د خپل دين د نصرت وعـده کړی ده او دا يــې زيــری ورکـــړی دی چـــې د پيغمبر صلی الله عليه وسلم په امت کې به يوه داسی ډله هميشه وي چې د حق د پاره به جنګيږی او غـالب بـه وی د بـد خواهـانو بـد خواهــی او د مخالفينو مخالفت بـه دوی تـه هيـڅ ضرر نـشی رسولای تر څو چې خدای "ج" خپلـه فيصلــه وکــړی يعنـــی قيـامت شـي او دوی پـر خپــل عــزم باندی کلك ولاړ وي

لکـه څنګه چې تاسي تـه معلومـه ده تـاسي مسئوليت لری چې د دې لـوی مجموعې په وړاندی چې ستاسی د

**مسلمانان پوه کړي چې عزت او کامیابي په جهاد کـښې نغښتـې ده وړاندنـې مسلمانان د همدې جهاد په برکت عزتمند شـوي وو اوسنـي او راتلونکـي مسلمانان بـه هــم پــه همدې جهاد عزتمند او کامیابیږي**

محبت پـه وجـه راجمـع شـوی دي او ستاسـو د هدايـاتو پـه انتظـار دي پــه ډاګه د حــق اظـــهار وکـــړی او دا يوازيتوب او غربت بـه يـې ختميـږی مســلمانانو تـــه د دې درس ورکـــړی چې : د الله تعالٰی په لاز کښی جهاد تـر هغـو نشـی ترسره کيـدلای چې تـر څو د يوې داسی ډلی له لاری څخه نـه وي کوم چې د يوه امير خبره اوری او پـه ده د دوی پرچی راټوليږی لکـه چې رســول الله صلـــی الله عليـــه وســـلم فرمـايي : چـې زه تاسـو تـه پـه هغـه پنځو شيانو امر کوم پـه کومـو چـې ماتـه الله "ج" امـر کـړيـدی اول پـــه اوريدلـو سره دوهم پـه اطـاعت سـره دريم پـه جهاد سره څلورم پـه هجرت سره پنځم پـه اتفاق سره .

(( و انا امركم بخمس الله امرنی بـهن "السمع والطاعه والجـهاد واالـهجره والجمـاعـه فانـه مــن فــارق الجمـاعــه قيـد شبر فقد خلع ربقـه الاسلام مـن عنقه الاان يرجع و من ادعـی دعـوی الجاهليتـه فانـه من جثـه فقـال رجــل يارسـول الله وان اصلـی وصـام قـال و ان صلــی وصـام فـادعوا بدعــوه الله الـذی سمـا كـم المسلمين المؤمنيــن عبادالله )) "رواه احمدی و ترمذی "

لکه د حضرت خذيفهٔ رضی الله عنـه پـه حديـث کـښی چـې راغلـی ( تلـزم جماعـه المسـلمين و امامـهم ) " رواه البـخاری و مسلم "

( و كمـا قـال فی حديث جماعـه مــن الصحابـه ثـلاث لايغـل عليـهن قلـب مسـلم اخـلاص عمـل الله و مناصحـه ائمه المسلمين و لزوم جماعتهم فـان الدعـوه تحيـط مـن وراتــهم " رواه الترمذی "

(( و قـال مـن مـات وليـس فـی عنقـه بيعـه مـات ميتــه جاهليــه )) " رواه مسلم عن بن عمر "

پورتـه ذکرشوي نبـوی احـاديث د دې درس ورکوي چې اسلام تر هغو نشي راتلای چـې تـر څو مسـلمانان د يوې ټولنـی تـر سـيولی لانـدې رانشــي او ټولنه تر هغـه نشـي جوړيـدلای تـر څو امـير ونلری او امـير پکـښی تـر هغـه نشی راتلای تر څو د هغه امرونه ونـه منـل شـي او خبری يـې وانـه وريـدل شي .

او تـاسو ښـه پوهيږی چې پدې سختـو شرائطو کې الله تعالی پدې امت رحم

وکړ داسې چې په دوی کښې يې داسې اسلامي امارت قائم کړ چې د الله تعالی شریعت نافذه وی او د توحید بیرغ پورته کوي او هغه هم د افغانستان اسلامي امارت دی د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر " مجاهد " په قیادت سره.

الله تعالی دي یې له مصیبتونو څخه وساتي.

نو ستاسې واجب د اسلامي امارت سیوری ته د خلکو دعوت کول په سرمال سره کومک کول او د هغه نریوال کفر په مقابل کې چې د سیلاب په شان روان دي د اسلامي امارت سره ټنګ په ټنګ دریدل دي.

نو هیله ده چې د کفر د مقابلې لپاره د خپل کانفرانس په اجندا کښې لاندیني موضوعات هم شامل کړي.

په ټولو ممکنو وسائلو سره د افغانستان د اسلامي امارت ملاتړ او مرستې ته بلنه ورکول: اول په نفس سره د ځوانانو تشویقول جهاد ته ځکه جهاد د نن ورځو کښې لومړی فرض ګڼل کیږي.

دویم په مال سره: د غنیانو او مالداره خلکو رادعوتول تر څو له اسلامي امارت سره مالي مرستې وکړي لکه د خپلو مالونو زکات ورکول او خپلې مالي پانګې اچول د اسلامي امارت د تقویې لپاره.

دریم په ژبه سره: د اسلامي امارت د شرعی قانونیت او دهغه مرستې او د امیر اطاعت په باره کښې فتوا صادرول.

او په همدې مناسبت زه تاسو او د نړۍ ټولو مسلمانانو ته پدې تاکید کوم چې زه عقیده لرم چې د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر سره بیعت کول فرض دي او یقینا بالفعل ما بیعت ورسره کړي.

په هغه ډیرو شرعی نصوصو د عمل پخاطر چې یو له هغو څخه د حذیفه رضی الله عنه ذکر شوی حدیث چې فرمایي " (تلزم جماعه المسلمین و امامهم).

ترجمه: د مسلمانانو د ټولنې او دهغې د امیر ملازمت او ملګرتیا کوه.

او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په قول کښې چې: (من مات ولیس فی عنقه بیعه مات میته جاهلیه) " رواه مسلم "

ترجمه: که څوک مړ شي بغیر له دې چې بیعت یې کړي وي نو د جاهلیت په مرګ سره مړ شوی دي.

نو ځکه خو عالیقدر امیرالمؤمنین ملا محمد عمر هغه شرعی حاکم او امیر دي چې د خدای " ج " شریعت یې په نن زمانه کښې تطبیق کړي دي.

ده اسلامي نوی فرمانو چې اخری یې د بتانو د ماتولو فرمان او د مخدره موادو منع کول او د کفری نړۍ د حملې په مقابل کښې په ټینګ عزم سره دریدل بل څه نه دي مګر د هغه اسلامي تاریخي مواقف دي چې د ده په صدق او حق باندی په اثبات کولو کې تاکید کوي.

ای د فضلیت خاوندانو: اسلامي امت تاسو ته پدې انتظار کې دي څو تاسو د حق بیان په لوړ اواز سره وکړي او پدې لار کې له ملامتی د هیڅ ملامتی کونکی څخه ونه ویریږی لکه چې الله تعالی فرمایي:

(( الذین یبلغون رسالات الله و یخشونه ولا یخشون احد الا و کفی بالله حسیبا ))

ترجمه: هغه کسان چې رسوی پیغامونه د الله تعالی او ویریږی له اوله الله تعالی څخه پرته بل له هیچا څخه نه ویریږی او کافی دي الله تعالی په حساب کونکی د بندګانو. " سوره الاخراب "

او بل ځای فرمایي: (و اذا اخذالله میثاق الذین اوتوالکتاب لتبیننه للناس و لاتکتمونه)) او یاد کړه هغه وخت چې الله تعالی د کتاب د خاوندانو څخه کلکه وعده واخیسته چې دا کتاب به خامخا خلکو ته بیانوی او پټوی به یې نه. " ال عمران ۱۸۷ "

او په اخر کې زموږ منني قبولی کړي او له الله تعالی څخه درته د حق پر لاره باندی د ثبات غوښتونکی یو.

(( و قل اعملو افسیرالله عملکم و رسوله والمؤمنون )) " سوره توبه "

والسلام علیکم و رحمت الله و برکاته

ستاسی ورور

اسامه بن لادن

د فکر او پوهی ټوله پانګه باید یوه روحی او اخلاقي عظمت ته تسلیم شي.

" میترکینګ "

# حضرت لقمان حکیم رضی الله عنه او په قرانکریم د هغه یادونه

لومړۍ برخه

محمد وزیر "حامد"

لقمان حکیم په عربو کې یو نامتو شخصیت تیرشوی دی خو له دې سره د هغه د ژوند په حالاتو او نسب کې کښې وینا وی شوی دی . په دې خو اتفاق دی چې لقمان لوی حکیم او هوښیار سړی و . د ده د وینا و او حکمتونو یوه صحیفه هم مشهوره ده .
خو د ده په اړه په نورو څیزونو کې نظریات متضاد او مختلف دی دا ځکه چې په لرغونی تاریخ کې د لقمان په نامه یو بل کس هم شته چې د "عاد ثانیه" د قوم یو نیك سیرته باچا و او عرب نژاده و . ابن جریر طبری . ابن کثیر د مشقی او سهیلی وایي :
لقمان حکیم په اصل کې افریقایي نسله و او عربو ته د غلام او مریي په حیث راوستل شوی و . دا مؤرخین د ده د نسب او څیري په اړه لیکی :
لقمان د عنقا زوی او د سندون لمسی دی . یاد ثار زوی او د سندون لمسی دی . دی د سوډان اوسیدونکی او له ( نوبی ) قوم سره تړاو لری . تیتپه ونه او تور رنګه و . غټپی شونډی او لوی لاسونه یې و . خو ډیر ښه . عابد . زاهد . هوښیار او د حکمت څښتن و .
خدای "ج" د پوهی او حکمت پوره برخه ورکړی وه . او ځینی داسی هم وایي چې د داود علیه السلام په وخت کې یې د قضا دنده هم ترسره کړی ده .
عبدالله بن عباس رضی الله عنه وایي چې لقمان حبشی غلام او تر کاڼ و .
جابر بن عبدالله رضی الله عنه وایي : لقمان په ونه تیټ شونډی یې لویی او له ( نوبی ) قبیلی څخه و . سعید بن المسیب رحمه الله تعالی وایي چې دی د مصر د سوډان ولوی څښتن نبوت نه و ورکړی خو پوهه او حکمت یې ورکړی و . ( روض الانف . تاریخ ابن کثیر او تفسیر ابن کثیر ) عبدالرحمن بن حرمله وایي چې سعید بن المسیب ته یو حبشی راغی او څه پوښتنه یې ځینی کوله سعید ورته وویل : له دې کبله خپه کیږه مه چې تور حبشی یې . ځکه چې په سوډانیانو کې د دنیا دری لوی انسانان تیرشوی دی چې هغه بلال . د عمرمریی مهجع . لقمان حکیم چې د سوډان نوبی و او غټپی شونډی یې وی . ( تاریخ ابن کثیر دویم ټوك ) لوی مؤرخ او د مغازی ماهر محمد بن اسحاق وایي چې لقمان حکیم د عربو له مشهورې قبیلې ( عاد ) سره تړاو لری یعنی غلام نه و او له ( عرب بانده ) څخه و .
وهب بن منبه وایي : کله چې د عاد زوی شداد ومړ نو باچایي د ده ورور لقمان ته پاتی شوه لقمان ته خدا "ج" دومره څه ورکړی و چې د ده په زمانه کې یې نورو خلکو ته نه و ورکړی .
هغه ته خدای "ج" د سلو تنو حاسه او د ادراك ځواك ورکړی و او خورا لوړه ونه یې وه چې د ده په وخت کې له هر چا څخه جګ و . ( کتاب التیجان ۷۰ مخ ) . قرانکریم او لقمان حکیم
په قرانکریم کې هم د لقمان یادونه شوی ده او له دې کبله د قرانکریم د یوه سورت نوم ( لقمان ) دی قرانکریم که څه هم له خپلی موخی سره سم د هغه د نسب او کورنی یادونه نده کړی خو د هغه له حکمته ډکی وینا وی یې چې په کوم اندازه کې ذکر کړی دی له هغه څخه د لقمان په شخصیت یو څه رڼایی لویږی قرانکریم وایي :

لقد اتینا لقمان الحکمه ان اشکر لله و من یشکر فانما یشکر لنفسه و من کفر فان الله غنی حمید .

ژباړه : بیشکه چې مونږ لقمان ته حکمت ورکړی و . ( او وویل شو چې ) د خدای "ج" شکر ادا کړه نو څوك چې د هغه شکر ادا کوی هغه د خپل ځان د ګټی له پاره کوی او څوك چې کفر او ناشکری کوی نو الله پاك بی پروا او د حمد څښتن دی

و اذ قال لقمان لابنه و هو يعظه يا بني لاتشرك بالله ان الشرك لظلم عظيم.

ژباړه : او کله چې لقمان خپل زوی ته د نصیحت کولو په ترڅ کې وویل ای بچیه له خدای " ج " سره شریك مه نیسه بیشکه چې شرك خورا لوی ظلم دی . د قرانکریم په ایتونو کې د لقمان نصیحتونه راغلی دی چې خپل زوی ته یې کړی دی او هغه نصیحتونه په لاندی ډول دی .

۱- ای زویه لمونځ کوه . ۲- په نیکیو امر کوه او له بدو څخه خلك منعه کوه

۳- څه مصیبت چې درته ورسیږی په هغه صبر کوه او بیشکه چې دا صبر کول د همت له کارونو څخه دی .

۴- له خلکو سره د بنو اخلاقو چلن کوه داسی مه کوه چې د غرور او تکبر له کبله مخ څینی وګرځوی

۵- د خدای " ج " په ځمکه باندی په تکبر او لویی سره تګ مه کوه دا ځکه چې لوی خدا " ج " کبرجن نه خوښوی .

۶- په تګ کې د تل له پاره عاجزی او تواضح کوه ۷- په نرم اواز سره خبری کوه ځکه په قوت سره خبری کول د انسانانو کار ندی که لوړ او بی وجی اوچت اواز ښه شی وای نو د خره اواز به د ستایلو وړ و خو د هغه اواز په ټولو کې بدترین اواز شمیرل کیږی .

مخکی د لقمان حکیم په اړه دوه نظریې تیری شوی یوه دا چې دی حبشی غلام و او بله دا چې دی عربی النسل او باچا و . خو مخکی مونږ دا هم وویل چې قران کریم د لقمان د نسب او کورنی په اړه څه ندی ویلی اما د قران کریم له ایتونو څخه ډیر څه معلومولای شو چې هغه د دویمی نظریې تائد او کره والی ته نغوته کوی

که چیرته لقمان حکیم غلام وای نو خپل غلام زاده زوی ته به یې داسی نصیحتونه کول . ځکه غرور او تکبر ، ځان لیدنه او لوی والی . سختی او بد اخلاقی هغه صفتونه دی چې اکثره په باچایانو . شهزاده ګانو . شتمنو او واکمنو خلکو کې پیدا کیږی او د کبرجنو او خدای ناسوسره دشتمنو په کورونو کې هم دا بد صفات پیدا کیږی . او غلام یا غلام زاده د دې صفاتو له پاره نه وخت لری او نه یې وړ دی ځکه د هغو وخت خو د نورو په خوشالولو او چوپړ کې تیریږی او ډیره لیږی خبر ده چې دا ډول صفات دی ولری .

شیخ سعدی څومره ښه ویلی دی :

تواضع ز گردو فرازان نیکوست    گدا
گر تواضع کند خوی اوست    نو دا

ویلای شو چې لقمان حکیم یو نیك سیرته باچا و او له ( عاد ثانیه ) سره یې تړاو درلود . او د هود علیه السلام په پیروانو کې راځی حبشی نه و بلکی په اصل کې عربی و .

نو د نامتو مورخ محمد بن اسحاق خبره پخه ده او د هغه د خبری د تائید او لاینختن له پاره دلته د یوه جاهلی عرب شاعر ( سلمی بن ربیعه ) دوه شعرونه هم رانقل کوو چې له هغه څخه به حقیقت ښه څرګند شی

اهلکن طسما و بعده
غدی بهم و ذاجدون
و اهل جاش و مارب
وحی لقمان والتقون

ژباړه : د زمانې پیښو د طسم قوم . او له هغه وروسته د یمن باچا ذاجدون .

د جاش او مارب واله . او د لقمان قبیله له منځه یووړل . له دوم شعر څخه نه یوازی د ده عرب والی معلومیږی بلکی دا هم رابنیی چې دی د یوې قبیلې مشرو د یمن اوسیدونکی و او په لوړوالی او عظمت کې د سبا مقابل و نو له دې څخه څرګندیږی چې دی د عاد له قوم سره تړاو لری . له کال ۱۸ ه کې د عادیانو یوه کتیبه پیدا شوی وه چې په هغې کې دا لاندی لیکل شوی . " په مونږ هغه باچا حکومت کوی چې له بدو فکرونو څخه ډیر لیری دی او بد اخلاقو او شریرو خلکو ته سزا ورکوی . او د هود له شریعت سره سم زمونږ واسطې پیدا کیدلی . ښې پریکړی به په یوه کتاب کې لیکل کیدې " تاریخ ارض القران د سید سلیمان ندوی کتاب ج اول مخونه ۱۸۱- ۱۸۲- او مخکې لومړنی نظریې په ترځ کې چې کوم دلائل تیر شول او د عبدالله بن عباس . جابر بن عبدالله او نورو کوم روایتونه ذکر شول د هغو په اړه محدثین او د ( جرح او تعدیل ) پوهان وایي چې دا روایتونه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ندی رسیدلی . او دا چې د دی روایاتو راویان کمزوری خلك دی نو دا روایتونه ځینی کمزوری او ځینی یې بیخی د منلو وړ ندی . نور بیا ..



د اسلامي امارت دماليې وزير محترم "ملا آغاجان" (معتصم) د (کندهار) سره په مرکه کې

# زمونږ د بودجې زياته برخه په تعليم وتربيه او د هيواد په بياودانولو مصرفيږي

مرکه کوونکی:
مولوی محمد الياس
"وحدت"

**پوښتنه**: که مهرباني وکړي د تيرو رژيمونو هغه عمده خاليګاوې په ګوته کړی چې د ماليې وزارت په مربوطاتو کې درلودې؟

**ځواب**: تاسي ته به هم څرګنده وي چې تير رژيمونه او په خاص ډول د ثور کمونستی کودتا څخه وروسته ملحد حکومت د پخوانی شوروی اتحاد په اقتصادي او نظامي مرستو متکی وو، د ماليې وزارت پخواني سندونه په دی ګواه دي چې د دولت د کلنی بودجی په ترتيب کې چندان دقيقه توجه نه کيدله، د عوايدو او مصارفو د معقوليت اندول په نظر کې نه نيول کيده هر وزير يا عمومی رئيس به چې په ګوندي لحاظ قوي او روسانو ته به نږدی وو، هغه ته به زياته بودجه ورکول کيدله پرته له دي چې د هغه وزارت يا عمومي مستقل رياست حقيقی اړتياوي سنجش شي. په نتيجه کې به بودجه په غير ضروري خدماتو او االجناسو مصرف کيدله. د ټوپکيانو د واکداري په وخت کې وزارتونه په تنظيمونو ويشل شوي وو. هر تنظيم ته چې د ماليې وزارت سپارل کيده، نو وزارت به د هماغه تنظيم په خدمت کې وو قانون او مقررات نه رعايتيدل. او مطلقه خودسري حاکمه وه. په دغه دوره کې نه يوازی د ماليې وزارت بلکه ټول وزارتونه د تنظيمی علايقو او اړيکو پر بنا اداره کيدل او د هيواد ملی ګټې قطعا په نظر کې نه نيول کيدلی، بودجه به د کاغذ پر مخ جوړه شوه خو د کال په پای کې به د ټاکل شوي بودجی درې چند مصارف شوي وو. او د شوو مصارفو مدرك به هم نه وو معلوم.

**پوښتنه**: د اسلامي امارت په قيام سره د ماليې وزارت په مربوطاتو کې څه تغيرات راغلي؟

**ځواب**: د طالبانو د اسلامي تحريك په لاس د کابل د فتحې نه وروسته نه يوازې د ماليې وزات بلکه تقريبا ټول وزارتونه د ټوپکيانو لخوا چور او چپاول شوي وو. موټر، فرش، ظرف، ميز، چوکی او حتی سندونه يې له ځان سره وړي و. او يا يې هم محوه کړي و. د ماليې وزارت په ډير بد حالت کې واقع وو. د دغه وزارت په انګړ کې ټانګونه، او ثقيله سلاح ګانی ځای پرځای شوي وي او د جنګ په سنګر بدل شوي و. نو تاسی پخپله فکر وکړی چې د دغه وزارت حال به څه وو خو وروسته په تدريج سره د دغه وزارت د مسئولينو په هڅه او هاند او د بودجوي امکاناتو په نظر کې نيولو سره دغه وزارت په خپلو پښو ودريد. چون د ماليې وزارت په هيواد کې د ماليې سيستم تنظيموونکی اداره ده نو کوښښ وشو چې د مالی قوانينو او اصولو په رڼا کې امارتی بودجه تنظيم کړي، د عوائدو سرچينی بيا راژوندی کړي او د مصارفو او عوائدو د انډول په پام کې ونيسی. د خلکو د سهولت په خاطر د تيرو کلونو د ځمکو د ماليې باقيات معاف کړل شول، له دقيقی او هر اړخيزی ارزيابی وروسته د انفرادی تجارو او شرکتونو د مالياتو په تحصيلولو کې. سهولتونه رامنځ ته شول، نفتی او خوراکی موادو په واردولو باندی انحصار ختم شو، په دي توګه تجاران او شرکتونه وهڅول شول چې خپل تجارتی فعاليتونه بيا پيل کړي.

په اداری لحاظ د ماليې وزارت په مربوطاتو کې امين او ماهر افراد په مهمودندو باندي وګمارل شول چې په خپلو نه ستړی کيدونکو هلو ځلو سره خپلو دندو ته دوام ورکوي.

**پوښتنه**: که د اسلامي امارت په اقتصادي حالت او اقتصادی منابعو باندې يو څه رڼا واچوی؟

**ځواب**: د افغانستان د اقتصادي حالت بيانولو ته کوم ضرورت نشته ځکه چې عيان دي نو څه حاجت يې بيان ته دي. د ملحدينو او سره شوروی سره د جهاد په دوران کې د هيواد په سلو کې (۷۰) فيصده اقتصادي سرچينې له منځه

ولاړي او پاتې فیصدي بیا د تنظیمي مقابلو او قدرت طلبۍ قرباني شوي. اوس اسلامي امارت ته وران او ویجاړ هیواد پاتې دی. شتمنۍ یې د کمونستانو او ټوپکیانو لخوا لوټ شوه. مونږ د تیرو حکومتونو د ورانیو او ویجاړیو په شمیرنې او احصایې اخیستنې کوم فکر نه کوو. بلکه ټوله توجه مو پدې کې ده چې څرنګه وکولای شو دغه راپاتې شوي روان او ویجاړ افغانستان بیرته ودان کړو.

**پوښتنه**: اسلامي امارت پر اوسه پورې د کفري زورواکې نړۍ د فشارونو له امله زیاتو اسلامي او غیر اسلامي ملکونو په رسمیت ندی پیژندلی لهذا مالي کومك نه ورسره کیږي او ټول تجارتي او صنعتي تاسیسات یې تخریب شویدي. لهذا صادرات او واردات هم چندان نلري او پیسې هم پخپله نشي چاپولی خو هم ویل کیږي چې یوه روپۍ هم د چا قرضداره ندي د دغه کامیابۍ عامل ستاسو په نظر څه دی؟

**ځواب**: په مالي چارو کې زمونږ د کامیابۍ یواځنی عامل د عوائدو او مصارفو ترمنځ د تعادل برقرارول دي. مونږ له خپل ټغر څخه پښې نه وباسو. څومره مو چې امارتي عواید دي، د هغه په تناسب امارتي مصارف هم سنجول شویدي او د چارو اړوند مسئولین په دې قانع هم دي.

پوښتنه: افغاني پیسې ورځ په ورځ کښته راځي ستاسو په فکر یې علت څه کیدای شي؟

ځواب: د پیسو د ارزښت د ټیټیدو عمده عامل د مخالفینو لخوا د بې پشتوانې بانکنوټونو چاپول دي. همداراز د کفري نړۍ لخوا د ظالمانه بندیزونو جاري کول او په تجارتي فعالیتونو کې د دغه بندیزونو په وجه د رکود او کمښت رامنځته کیدل یې بل عامل هم کیدلی شي.

**پوښتنه**: د مالیې وزارت لخوا د کال بودجه څه ډول سنجول کیږي او د مصرف پلان یې په څه ډول جوړیږي؟

**ځواب**: د امارت کلنۍ بودجه د اسلامي امارت د نافذه قوانینو په رڼا کې د عوائدو او مصارفو د دقیق او هر اړخیز سنجش څخه وروسته ټاکل کیږي.

**پوښتنه**: که د خپل لګښت لنده فیصدي راته اوایې چې په کومو کومو ارګانو او څومره څومره پرې لګیږي؟

**ځواب**: تاسي ته هم څرګنده ده چې د کمونستانو د واکدارۍ په وخت کې دیني تعلیم او تعلم تقریبا د هیواد په سطح له منځه تللی وو، او نوي نسل د کمونستي فرهنګ او کلتور تر اغیزې لاندې عمدا راوستل شوي و نو چون د طالبانو اسلامي تحریك په هیواد کې د شریعت د نفاذ په خاطر راپاڅیدلی دی نو اوس زمونږ زیاته توجه د معارف وخواته ده او تقریبا یوه زیاته اندازه امارتي بودجه د تعلیم او تربیې په برخه کې په مصرف رسیږي. همداراز چون ټول هیواد په کندواله بدل شوی، نو په دوه یم قدم کې د امارت توجه د تیرو ویجاړو بیا ودانولو ته ده او په دې برخه کې هم یوه زیاته اندازه بودجه په مصرف رسیږي. همداراز د امارت بودجه په نظامي برخه کې هم په مصرف رسیږي څکه چې د اسلامي امارت مخالفین د بهرنیانو لخوا په نظامي او اقتصادي لحاظ تمویلیږي او په هیواد کې د اسلامي نظام د تطبیق او د سولې د ټینګښت مقابله کوي.

**پوښتنه**: په نړیواله سطحه د دې لپاره چې د اسلامي نړۍ اقتصادي منابع د کفارو له پنجو څخه خلاص او یو نړیوال اسلامي اقتصادي پلان جوړ او عملي شي څه تجویز او مشوره لرې؟

**ځواب**: یوازې او یوازې د اسلامي نړۍ د نظر او عمل وحدت د دوی د اقتصادي، سیاسي او پوځي بریالیتوب سبب ګرځیدلی شي او هم دغه وحدت به اسلامي نړۍ ته موقع ورکړي چه د معاصرې ټکنالوژۍ علم زده کړي تر څو د اقتصادي منابعو په فعالیت او وده کښې یې په کار واچوي.

**پوښتنه**: له نړیوالو او په خاصه توګه اسلامي نړۍ ته د افغانستان په باب څه پیغام لرې؟

**ځواب**: زمونږ پیغام اسلامي نړۍ ته دا دی چې ټول سره یو موټي شي او د کفارو له غلامي څخه ځان وژغوري. حکه چې الله "ج" په قران کریم فرمایي: (لایتخذ المومنون الکافرین اولیا من دون المومنین) نو که چیرې اسلامي حکومتونه په دغه آیت مقدس باندې عمل وکړي نو په دنیا کې به ورته الله "ج" د عزت او شهامت ژوند ورپه نصیب کړي او په اخرت کښې به هم سرلوړي او بریالي وي.

قاضي محمد حسن " حقیار "

# کلتور او عنعنه د اسلام په هنداره کې

دا څرګند حقیقت دي چې هر ولس ، هر ملت او هر قام خانته د ویاړنې بیلابیل ملي عنعنې لري . د دې رواجونو او کلتور ، دودونو او دودونو ترسره کول په ځان لازم او پرېښودل یې خانته شرم او د عیب خبره بولي . عربانو د اسلام له راتلو څخه وړاندې همداسې ملي دودونه ویاړنې او پخوانۍ عنعنې درلودلې چې ځینې یې لا تر اوسه هم په دې قام کې ژوندي ساتل شوي دي .

استاد ظافر القاسي له اسلام څخه وړاندې د عربانو دودونه او فولکور په خپل کتاب " الحیات الاجتماعیه عند العرب " کې ډېر ښه روښانه او انځور کړيدي همداراز امام ابوالفرج اصفهاني خو د عربانو په ټولنیز ژوند ، فولکلور ، ملي ادب عنعنو ، دود او دستور باندې ډېره اوږده او هر اړخیزه څېړنه کړیده چې په څو ټوکه کتاب کې یې خوندي کړيدي . (۱)

محمدابن سعید ابن حزم هم د عربانو د بیلابیلو قبیلو ټولنیز ژوند ، کلتور ، مذهب عقیدې دودونو او دستورونو ته اوږده ، جامع ، دقیقه او هر اړخیزه کتنه کړیده او په خپل مشهور تالیف کې یې ځای په ځای کړیدي . ( ۲ )

د اسلام د ډیوې په روښانیدلو سره د عربانو د دودونو هغه برخې چې له دې دین سره یې اړخ نه لګاوه له مینځه ولاړلې او هغه برخې یې چې د اسلام له سپیڅلي دین سره یې ټکر نه درلود تر ډېره وخته حتی تر اوسه هم ژوندي پاتې دي .

افغانان هم د عربانو په څېر او هم ځانته بیل کلتور او عنعنه لري او د اسلام دوړانګو تر خپریدلو د مخه یې هم هر قوم ځانته بیل بیل دودونه او عنعنې درلودلې چې د دوی د دودونو او رواجونو ځینې هغه برخې هم چې د اسلام له لارښوونو سره په ټکر کې وي له مینځه تللي دي او ځینې یې لا تر اوسه په خپلې هماغې پخوانۍ بڼې پاتې دي او هغه برخې یې چې له اسلامي روحیې سره سمون خوري تر اوسه هم له اسلام سره همغاړه ژوند کوي .

کلتور یا فرهنګ د هر ملت د ملي هویت څرګندوي دي ، دودونه او رواجونه ، موزیمونه او ننداړتونونه د یو ملت هویت ترجمان او د ملي احساساتو ښکاروندوي بلل کیږي خپل کلتور هر چاته ګران دي ، هر څوک غواړي چې د کلتور د واکمنۍ او عملي کیدلو دایره یې لویه او پراخه وي څرنګه چې د دین او مذهب د دایرې د ساحې د پراختیا لپاره سپیڅلې جګړې ترسره کیږي او وینې په کې بهیږي . همداراز ډېر ولسونه غواړي چې خپل کلتور په نورو وروتپي ، د خپل کلتور د صادرولو لپاره عملي جګړې کوي . قومونه او ولسونه هم په آسانه د یته

غاړه نه ږدي چې خپل کلتور او رواج پريږدي او د پرديو فرهنګ عملي کړي او که څوک د خپل کلتور او عنعنې په ځای د نورو کلتور ته ځئي وغورځوي نو داسې شخص او ټولنه بيا سپکه ، خواره او ذليله ګڼل کيږي خلك يې له سيالانو سره سيال نه بولي او د حقارت په سترګه ورته ګوري
نو کله چې وګړي او ولسونه کلتور . رسم او رواج ته په دومره درنه سترګه ګوري نو راځی چې کلتور او عنعنه د اسلام په هنداره کې ووينو چې زموږ ټول ژوند چاري ، کړنې حتی مړينه هم د همدې دين په چوکاټ کې تنظيم شويده .

**د کلتور او عنعنې شرعي حيثيت او ارزښت :**

مخکې له دې چې د موضوع شرعي حيثيت وڅيړو دا يوه روښانتيا په کار ده چې د رواج او دود اطلاق يوازې په هماغو پخوانيو څو سوه يا څو زره کلنو دودونو عنعنو او رواجونو باندې نه کيږي او په دې ليکنه کې زموږ موخه هم يوازې د پخوانيو دودونو شرعي حيثيت معلومول او د لرغونو رواجونو لمانځنه نه ده بلکه موخه مو د پخوانيو ثابتو او بدلون نه منونکو دودونو او اوسنيو بدليدونکو او جوړښت منونکو رواجونو دواړو څيړل او شرعي حکم معلومول دي .
د عنعنې او عرف ( چې په رواج سره يې هم تعبير کيږي ) توپير دا دی چې د عنعنې اطلاق يوازې په هغو دودونو باندې کيږي چې لرغوني وي او تاريخي شاليدو لري او عرف اطلاق په اوسني وخت کې پيژندل شويو خپلمنځي تعاملاتو او چلند باندې کيږي . که څه هم زه د خپلې دې نظريې د تائيد او رښتينولۍ لپاره د کتاب کومه باوري تکيه نه لرم خو ورځنی تعامل او خپلمنځي محاوره او عام حاکم ذهنيت يې راسره تائيدوي د رواجونو په اړه د ( پخواني او اوسني ) جملې هم د دې څرګندوي دي چې اوسنيو خپلمنځي پيژندل شويو تعاملاتو ته هم رواج يا دستور وايي لکه چې عام خلك وايي " اوس هغه پخوانی رواج له منځه تللی دی " " اوس دا ډول جامه رواج نه ده " " موږ اوس دا رواج نه لرو " او داسې نور . ځينې خلك د رواج تعبير د " موډ " په کلمې سره هم کوي او د موډ کلمه هم د حاکم رواج لپاره کاروي .
شريعت دواړه ډوله دودونو ته اهميت ورکوي او سترګې پرې نه پټوي . اسلام ښه دودونه که هغه پخواني وي او که اوسني تائيدوي او تشويقوي . او ناوړه ټولنې او وګړو ته زيانمن دودونه که پخواني وي او که اوسني رد وي او په رسميت يې نه پيژني . د دود او دستور د حکم د معلومولو لپاره مخکې له دې چې په اړی " اصلي " موضوع ترکيز وکړو لاندينی لنډه مقدمه به په دې اړه ډيره ګټوره وي .
په نړۍ کې په زرګونو حتی په لکونو ډوله تعاملات ، برخوردونه ، وينا ګاني ، کړنې او اجراات شته دي په اصل کې دا ټول روا او مشروع دي خو له هغو پرته چې حرمت يا حراموالی يې په شرعي نص سره ثابت شوی وي . قرآن دا ټول هر يو په تفصيل سره يادولای نه شي او نه قران او حديث دومره تفصيل لري نو ځکه يې وويل چې " وقد فصل لکم ما حرم عليکم " يعنی : او په تحقيق سره هغه څه چې الله " ج " پر تاسې حرام کړيدي هغه يې معلوم او واضح کړيدي . ( ۳ )
او فقهاؤ هم د " الاصل فی الاشياء الاباحه " يعنی : اصل په شيانو او چاروکې اباحت ( روا والی ) دی . قاعده هم د همدې نصوصو په رڼا کې وضع کړيده .
الله " ج " فرمايي : " هوالذی خلق لکم مافی الارض جميعا " يعنی : هغه ذات چې پيدا کړي يې دي تاسې ته ټول هغه څه چې په ځمکه کې دي . ( ۴ )
" وسخر لکم ما فی السموات و مافی الارض جميعا " يعنی : او تابع کړي يې دي تاسې ته هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي ټول " ( ۵ )
رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي " ان الله فرض فرائض فلا تضيعوها و حد حدودا فلا تعتدوها و حرم اشيا فلا تنتهکوها ، وسکت عن اشيا رحمه بکم غير نسيان فلاتبحثوا عنها "
يعنی : الله فرائض ټاکلي دي نو هغه مه ضايع کوی او حدود ( پولې ) يې ټاکلي دي له هغو څخه تيری مه

کوی او کوم شیان یې چې حرام گرځولی دي د هغوی بی حرمتی مه کوي او د کومو شیانو په اړه یې چې لاسي ( په قصدی ډول ) سکوت کړي او خان یې چوپ نیولي ( نو دا سکوت تاسو ته د رحمت په معنا دي نو په دې اړه بحث مه کوئ

" الحلال ما احل الله فی کتابه والحرام ما حرم الله فی کتابه و ما سکت عنه فهو مما عفالکم " یعنی حلال هغه دی چې الله " ج " په کتاب کې حلال گرځولی دی او حرام هغه دي چې الله " ج " په خپل کتاب کې حرام گرځولی دي او له هغه شیانو څخه یې چې سکوت کړیدي نو دا هغه څه دي چې تاسو ته بې معاف گرځولی دي . ( ۶ )

له دې روایاتو څخه څرگندیږي چې ټول هغه څه چې په شرعي نص سره حرام نه وي هغه روا او حلال دي نو له دې محدودې دایرې څخه پرته ټول څه که هغه اقال ( وینا گانی ) دي که افعال ( کړنی ) دودونه دي او که دستورونه روا دي ځکه چې د الله " ج " سکوت او چپوالی د همدې لپاره دي چې هغه حلال وگرځولی او دا یې د حلالو او حرامو د ټاکلو لپاره یو ډول فورمول کیښود چې ټول هغه څه چې په شرعي نص سره یې حرمت ثابت وی نو حرام دي او هغه څه چې قرآن یا حدیثو حلال گرځولي وي یا یې د هغې په اړه سکوت کړي وي نو هغه حلال دي ځکه چې دا له الله " ج " څخه هیر شوی نه دي " و ما کان ربك نسیا "

یعنی : او ستا رب هیروونکی نه دي . ( ۷ )

نو پخوانی عنعنې دودونه او اوسني رواجونه ، عادات ، فولکلور ، هنر یا په عام ډول کلتور هم د همدې فورمول لاندې راځی یعنی هر دود او رواج چې په شرعي نص سره حرام وي نو هغه حرام دي او له دې پرته ټول د روا او حلالو په دایره کې حسابیږی . هیڅوك هم حق نه لري چې له خپله خانه د یو کار د روا والی او ناروا والی په هکله فیصله وکړي هیڅوك حق نه لري چې له خپله اند د یو دود او رواج د حکم په هکله تصمیم ونیسی " ولا تقولو لما تصف السنتکم الکذب هذا حلال و هذا حرام لتفتروا علی الله الکذب ان الذین یفترون علی الله الکذب لایفلحون "

یعنی " او داچې ستاسي ژبې د دروغو حکمونه صادروی چې دا حلال دي او دا حرام دي . د دې لپاره چې په الله " ج " دروغ ووایی بیشکه هغه کسان چې په الله " ج " دروغ وایی دوی به خلاصی ونه مومی . ( ۸ )

الله " ج " د عربانو ډیر هغه لرغونی دودونه چې ټولنیزه زیان یې نه درلود او ښه رواجونه و په خپل حال پریښودلو سره په رسمیت وپیژندل او نور ټول دودونه یې چې د ټولنیز یا وگړنیز زیان لامل گرځیدل له منځه یوړل له هغه ښو دودونو څخه یې چې الله " ج " په خپل حال پریښی دي د وژونکی په عاقلې باندي د دیت موضوع ، په ودونو او نکاحگانو کې د سیالی ( کفوی ) شرط او په میراث کې د عصبیت د شرط موضوعگاني او له هغو ناوړو دودونو څخه چې له منځه تللی د وادالبنات ، ( ژوندیو لورگانو ښخول ) تبنیت ( پردی اولاد په زوی توب نیول ) د بیلگې په ډول یادولی شوو .

سنت هم درې ډوله لری چې د سنت فعلی ، سنت قولي او سنت تقریري په نومونو سره یادیږي او علما وایي چې دا دریم ډول یعنی تقریری سنت یې هغه دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د صحابه و پخوانی عادات او دودونه په خپل حال پریښی دي یا په بل عبارت هغه څه چې یو صحابی د رسول لله صلی الله علیه وسلم په وړاندي یو داسي کار کړي وي چې د حلالوالی او حراموالی په اړه یې په شرعي نصوصو کې څه نه وي راغلي او رسول الله صلی الله علیه وسلم د همدې کار په اړه سکوت کړي وي نو دیته تقریری سنت وایی چې تر ټولو پوری د هغه کار جواز ترې څرگندیږی او حکم یې هم کم تر کمه جواز دي په دې معنا چې که کول یې واجب یا سنت ونه بلل شي نو کم تر کمه روا خو دي



# سیمې ته د کوفي عنان سفر

عصمت قانع

د ملګرو ملتونو د موسسې عمومي منشي ښاغلي کوفي عنان جنوبي اسیا ته د خپل سفر پیل د مارچ په لسمه نیټه له پاکستان څخه وکړ .
په تیرو شپږو میاشتو کې د امریکا د پخواني جمهور رئیس بل کلنټن په شمول څو تنو جهاني رهبرانو دغې سیمې ته سفر کړی دي .
دا په خپله په سیمه کې د موجوده لانجو او لاینحاله ستونزو د نړیوال اهمیت او افادیت یو ښه ثبوت دي .
کوفي عنان په اسلام آباد کې د پاکستان او افغانستان له رهبرانو سره ملاقاتونه وکړل . د افغانستان د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزیر محترم ملا وکیل احمد متوکل له کوفي عنان سره تر یوه ساعت زیاته کتنه درلوده .
په دغه کتنه کې کوفي عنان د امنیت د شورای هغه پریکړې یادې کړې د کومو په نتیجه کې چې د افغانستان پر خلکو باندې ناروا بندیزونه لګیدلي دي کوفي عنان وویل . د افغانستان اسلامي امارت باید ډیر ژر د اسامه بن لادن لانجه حل کړي تر څو د بندیزونو د ختمیدو لپاره مناسبه فضا رامنځ ته شي .
کوفي عنان دا هم وغوښتل چې د افغانستان اسلامي امارت دې بودایي اثار له مینځه نه وړي او په دې باره کې دې د نړیوالې ټولنې تشویش اواندیښنه په پام کې ونیسي
د کوفي عنان د خبرو په ځواب کې د بهرنیو چارو محترم وزیر وویل چې : د بتانو ماتول او له مینځه وړل یو شرعي حکم دې په افغانستان کې اسلامي شریعت عملي نافذ دي او د شریعت پر نفاذ هیڅ ډول معامله ګیري او کمپرومایز نه شي کیدای .
اسامه بن لادن په افغانستان کې اوسي او په دې باره کې د افغانستان اسلامي امارت ته هیڅ ډول اسناد او قراین نه دي وړاندې شوي چې اسامه شرکت په تروریستي او سبوتاژ ګرانه هڅه کې تثبیت کړي بیا هم که داسې اسناد وي د افغانستان د اسلامي امارت ستره محکمه غوږ پرې کولای شي .
د بهرنیو چارو محترم وزیر وویل : چې مجسمې زموږ د لرغونو موزیمي اثارو صرف یو فیصد اثار دي باقي ۹۹ فیصده اثار بالکل محفوظ مصئون او پرځای دي او موږ په دې هکله د نړیوالو تشویش او اندیښنه بې ځایه او بې هوده ګڼو .
په مقابل کې د ملګرو ملتونو عمومي منشي وویل : چې نړیوالې موسسې بشري ټولنې ته پر له پسې وړاندیزونه کړي دي چې د وچکالۍ د فاجعې د حجم په کمښت کې د سخاوتمندانه کومکونه ترسره کړي او هم دې په افغانستان کې د بشري مرستو هجم زیات شي . عمومي منشي وویل : چې د افغانستان ګاونډي هیوادونه او په خصوصي توګه شپږ جمعه دوه هیوادونه په افغانستان کې د سولې او ثبات د اغیزمنې اعادې په لار زیات کومک کولای شي .
د خبرو په پای کې افغان وزیر وویل : چې ملګري ملتونه باید د افغانستان ځمکني سیاسي او اولسي واقعیتونه په پام کې ونیسي او د افغانستان اسلامي امارت دې په رسمیت وپیژني ده وویل : **چې په ملګرو ملتونو کې د افغانستان پر چوکۍ باندې د بې ادرسه رباني نصبول د مهذبې بشري ټولنې پر څیره د پیغور تور داغ دي .**
وزیر خارجه وویل چې زه به د سرمنشي وړاندیزونه او پیشنهادات د خپل هیواد قیادت ته رسوم تر څو غور پرې وشي .
د ملګرو ملتونو سرمنشي په پاکستان کې د افغاني مهاجرینو له کمپونو څخه هم لیدنه وکړه ، ده د مطبوعاتو په وړاندې د مهاجرینو د

سختو مشکلاتو په هکله د خپلې ژورې خواشینې څرګندونه وکړه او له نړیوالې ټولنې څخه یې وغوښتل چې د مهاجرینو د ستونزو او ربړو په کمولو کې دې کومک او مرستې ته راوړاندې شي د ملګرو ملتونو سرمنشي وویل چې په راتلونکې وخت کې به موږ داسې اقدامات ترسره کړو چې په نتیجه کې یې مهاجرینو ته د افغانستان په داخل کې کمپونه جوړ شي او د مرستې سامان به هم په افغانستان کې وویشل شي.

ده وویل چې د ملګرو ملتونو د مهاجرینو اداري ته لارښوونه شوې ده چې د افغانستان د اسلامي امارت له اړونده مقاماتو سره د خبرو اترو په نتیجه کې یو منظم میکانیزم جوړ شي ترڅو په دې هکله د مهاجرینو چارې په ښه توګه سمون او نظم ومومي او د مهاجرینو د مشکلاتو د حل یو ښه لاره په لاس راشي.

په جنوبي او مرکزي اسیا کې که د افغانستان مسئله ده او یا هم د کشمیر دا دواړې مسئلې د لویدیځ لپاره د اندیښنې او تشویش وړ مسئلې دي ځکه چه همدا لویدیځ دی چې د دغو سیمو د مسایلو په وړاندې له فطري او طبعي حق لرونکې دریځ څخه پر شا شوی دی او د دغو مسئلو په وړاندې یې مصنوعي او غیرطبعي دریځ او موقف خپل کړی دی.

امریکا او اروپا د اسلام د پرتم او جلال د راژوندي کیدو په ویره او ډار اخته شوی دی. د وی افغانستان د تروریزم مرکز بولي. غرب له مذهب او معنویت څخه سترګې پټوي او د انساني فضیلت مصنوعي ډنډوره غږوي.

**دوی د مذهب پر خلاف اوس له بې دینه او مادیت پرستو خلکو سره په اتحاد او یووالي کې په داسې اقداماتو لاس پورې کوي ترڅو د دوی لپاره د ویرې او ترس امکانات معدوم او له منځه ولاړ شي.**

له همدې سببه یې د افغانستان د مرکزي حکومت د عدم استحکام لپاره متې رانغاړلي دي او د یوه مستحکم حکومت د رسمیت نه پیژندلو د جرم او جنایت ارتکاب. له همدې امله یې افغانستان د نړیوالې اندیښنې د مرکزیت په توګه راوړاندې کړی دي.

له بله پلوه د کشمیر مسئله ده چې غرب غواړي د هندوستان د حکومت له عینکو څخه ورته وګوري له تیرو ۵۰ کالو راهیسې د ملګرو ملتونو د امنیت شورا پریکړه لیکونه د کشمیر د مسئلې په هکله راکد او بې عمله پراته دي حال دا چې د کویټ په هکله په پنځلسو ورځو کې د امنیت د شورا پریکړه لیکونه په زور او جبر عملي شول د ملګرو ملتونو سرمنشي ته د کشمیر مسئله له همدې امله د تشویش وړ ده.

چې په دغه مسئله کې د لویدیځ د پانګه وال نظام د یوه لوی مارکیټ یعنې هندوستان د وجود سوال نغښتی دي.

د هندوستان په تیره یوه لسیزه کې د لویدیځ د پانګه وال نظام د معرفي توکیو په یوه بې ساري مارکیټ بدل شوی دي او چیرته چې د غرب مادي کتبي حکم وکړي هلته د بشرد حقوقو بدنامه او مسخره پروپاګنډه د ډنډورې ډهل نه ډنګوي او هلته د بشري مسایلو موجودیت ناممکن دي.

د ملګرو ملتونو سرمنشي د کشمیر د مسئلې په هکله د امنیت د شورا له پریکړه لیکونو څخه د تیښتې د یوې لارې په توګه د لاهور پریکړه سرمنشي وویل چې هندوستان او پاکستان دی د کشمیر په هکله خپل اختلافات د لاهور د اعلامې دروحیاتو له مخې حل کړي او ژر ترژره دې مذاکرات پیل کړي.

سرمنشي وویل: چې ملګري ملتونه د کشمیر په مسئله کې هغه وخت دریم ګړی کیږي چې د مسئلې دواړه اړخونه پر دریم باندې د خپل باور ښکاره څرګندونه وکړي.

د ملګرو ملتونو د سرمنشي د سفر پای دا حقیقت روښانه کړ چې د ملګرو ملتو جهاني موسسه د امریکا د پانګه وال نظام د ګټو پالسیو او مرموزو سیاستونو د عملي کولو اداره ده او سرمنشي هم د خان او نواب ناظر

# عقل ، ارزښت او شرف ته یې کتنه

خدای تعالی پخپل محکم کتاب کې د عقل د شرف په هکله ډیر ځایه ډیر څه فرمایلی دي او په دې اړه یې ښه مثالونه ورکړیدی . فرمایي : و سخرلکم الیل والنهار و لشمس والقمر والنجوم مسخرات بامره ان فی ذالك لایات لقوم یعقلون سوره النحل ۱۲ آیت

نبی علیه الصلوه والسلام فرمایي : خدای تعالی " ج " تر هر څه وړاندی عقل پیدا کړ بیا یې ورته حکم ورکړ ( اقبل ) فقال عزمن قائل ) زما دي پخپل عزت او جلال باندي قسم وي چې ما پخپلو مخلوقاتو کې بل داسي څه ندي پیدا کړي چې زما په وړاندی یې عزت تر تا زیات وي ( یعنی ته تر ټولو عزتمن یې ) ستا په وسیله به له خلکو سره مو اخزه کوم او ستا له امله به خلکو ته بخښنی کوم ستا له امله به له خلکوسره محاسبه کوم او هم ستا له امله به خلکو ته عذاب ( عقاب ) ورکوم .

پوهانو ویلی : عقل یو روښونکی او بریښیدونکی جوهر دي چې خدای " ج " په دماغ کې ځای پر ځای کړیدي او رڼا یې زړه ته رسیدلي ده . عقل معلومات په وسایطو ( واسطو ) او محسوسات په مشاهده باندی پیژني .

" مستطرف " لیکی عقل په دوه ډوله دي یو هغه دي چې زیات " زیاتی " او نقصان " کمی " نه منی او بل ډول یې د دې په خلاف دي . یعنی زیادت او نقصان منی لومړی ډول ته عقل عزیزی وایی او دوهم ډول ته عقل تجربیی وایي او دا ډول کسبی دي کمی او زیاتی یې د تجربو او سړونو د وتر کمی او زیاتی پوری اړه لری . په همغه اعتبار څکه ویل شویدی چې سپین ږیری د عقل او د رایه لخوا په ټول پوره دي . او هغه خلك چې د ژوند سړي تودي یې ځکلي وي د فهم او معرفت یعنی د پوهی او څه پیژندنی لخوا پوره وي . ځنی داسي کسان هم شته چې لوی خدای " ج " وربانديي د خپلو پتو پیروزینو دروازی پرانستلي وي او دومره عقل او درایه ورکړي وي چې د اکتساب ټولی پولی یې لاندي کړي وي او په ډیر کم عمر کې یې عقل تر ډیرو سپین ږیرو پوخ وي . د یحی بن ذکریا علی نبینا و علیه والصلوه والسلام مثال زمونږ په وړاندي دي خدای " ج " د خپل دغه خوږ نبی د کیسی د بیانولو په وخت کې په خپل محکم کتاب کې فرمایی ( و اتینه الحکم مسبا ( سوره المریم ۱۲ آیت ) یعنی لوی خدای "ج " په هغه باندی په داسي حال کې د خپلو پیرزوینو دروازې پرانستلي وې چې هغه لا ډیر کوچنی وو او په دغه عمر کې یې د عقل او درایت . فهم او تدبیر له خوا د خپل وخت ټولو پوهانو او حکما ترشا پریښی وو .

د خواږ پیغمبر سلیمان داؤد علیه السلام خوږه کیسه هم د لوستلو وړ ده هغه ډیر کوچنی وو چې د میږو کروندې د موضوع په اړه یې د خپل پلار داؤد علیه السلام حکم در کړ . مفسرینو دغه کیسه په لاندی ډول روایت کړیده .

دوه کسان حضرت داؤد علیه السلام ته په شخړه راغلل یو د میږو څښتن وو او دا بل د کروندی څښتن وو . د کروندی څښتن شکایت وکړ چې دا بل سړی یې د شپې مهال خپلی میږی زما کروندې ( باغ ) ته وریریښی دی . میږو زما ټوله کرونده تباه کړیده او ماته اوس هیڅ هم نه دی پاتی . داؤد علیه السلام حکم ورکړ چې د میږی څښتن دي د کروندې د تاوان په بدل کې خپلی میږی کرونده گر ته ورکړی . دواړه کسان له دغه ځایه روان شول په لاره له حضرت سلیمان علیه السلام سره چې د مفسرینو په وینا هغه وخت چې عمر تر یولس کاله زیات نه وو مخامخ شول . هغه ته یې جریان کټ مټ تیر کړ . سلیمان علیه السلام تری وپوښتل چې پاچا داؤد علیه السلام مو په منځ کې څنګه حکم ( فیصله ) وکړه ؟ هغوی ورته د پاچا فیصله واوروله . سلیمان علیه السلام ورته وفرمایل . خوښه مونه ده چې د پاچا له فیصلې پرته یوه بله داسی فیصله دروااوروم چې د دواړو خواؤ پر گټه وی ! دغه دوه کسان بیرته داؤد علیه السلام ته راغلل او د سلیمان علیه السلام وړاندیز یې ورته بیان کړ . داؤد علیه السلام خپل زوی راوغوښت او تری ویې پوښتل دا کومه فیصله ده چې د دواړو خواؤ پرګټه ده ؟ سلیمان علیه السلام یې په ځواب کې وفرمایل : میږ و چې کومه کرونده له منځه وړی ده هغه په اصل کې د انګور وباغ دي او هغه وخت چې میږ وهغه خراب کړي وو د باغ تاکونه شنه وو او انګورو نښې ځرګندی کړي وي . د دغو دوو کسانو شخړی په اړه زما وړاندیز دا و چې میږی بایډ د باغ څښتن ته

تسلیمی کړای شی او باغ د میرو ځښتن ته دواړه دي د خپلو ورسپارل شویو شیانو څارنه او پالنه په دودیز ډول کوي او د باغ ښتن دي د میږو له شیدو او کوچو او غوړیو نه تر هغه کته اخلی تر څو یې د انګورو باغ بیرته شین او تاکونه یې درکندي کړي او د تاکونو څیره هغسې شي په کومه شېبه چې میږي ورګډې شوي وي نو هغه مهال دي د باغ څښتن ته باغ او د میږو څښتن ته خپلې میږي بیرته وسپارل شي. داود علیه السلام چې دغه وړاندیز وړاندې خوښ شو تائید یې کړ او ویې فرمایل قضاً همدا ډول وي . او د همدغه وړاندیز پر بنسټ یې د مدعیانو په منځ کې پریکړه وکړه . د دغې کیسې په اړه لوی خدای "ج "په قرآنکریم کې داسې فرمایي : " و داود و سلیمن اذ یحکمن فی الحرث اذ نفشت فیه غنم القوم و کنا لحکمهم شهدین ففهمنها سلیمن و کلا اتینا حکما و علما . سوره الانبیاء د سلیمان " ع " دغه ډول فهم او د رایت د ډیر عمر او اوږدو تجربو محصول نه وو بلکې د خدای تعالی لخوا په هغه باندې د عنایتونو او پېرزوینو لوړینه وه چې په دومره کوچنی عمر کې یې هغه دومره فهم او بصیرت . عقل او پروهه ورکړې وه چې د ځوند په تولو ډګروئو کې یې ډیر پوه تجربه کاره او حکما تر شا پریښی وو . رښتیا هم چې خدای تعالی چاته وغواړي چې له خپل فضل نه یې برخمن کړي نو بیا دا نه ګوري چې څوك دي او د چا زوی دي ؟ او څومره عمر لري .

د انسان د عقل د کمال پیمانه د هغه کړه وړه او خبرې دي . ځکه عقل یو داسې معنوی توکی دی چې مشاهده یې ممکنه نه ده ځکه مشاهده د اجسامو ځانګړتیا وي البته د یو چا په پوره عقل او کمال باندې دلالت کونکی شیان ډیر دي چې ځینې یې په لاندې ډول بیانیږي.

١ د ښو اخلاقو لوری ته تمایل او له ذایلو او بدو اخلاقو نه ځان ژغورل .

٢ په ښو کارونو امر کول او بدو کارونو نه د خلکو راګرځول .

٣ له هغو کارونو نه په کلکه ژغورل چې د مروت پر خلاف او د ښه انسان لپاره پیغور ګڼل کیږي او د انسان حیثیت ورسره

له منځه ځي او سپکیږي . ځینو حکما . دا دی پوښتنې په ځواب کې چې د سړی عقل څنګه پیژندل کیږي ویلی دي : په دوو شیانو په خبرو کې چه کمه غلطی او په خبرو باندې په پوره حاکمیت سره . بیا تری وپوښتل شول که نوموړی سړی حاضر نه وو نو بیا به د کومو قرائینو پر بنسټ د هغه پر هوښیاري او ناپوهی باندی قضاوت کیږي ؟ ځواب یې ورکړ په دغه صورت کې سړی په دریو شیانو باندې پیژندل کیږي قاصد لیك او تحفه او هغه داسې چې قاصد د ده قایم مقام دي او د ده نمایندګی کوی او په لیك کې په خبرو باندې د هغه حاکمیت او د هغه د ذهنی تمایل او حجان اندازه معلومیږي او په تحفه کې د هغه همت او میرانه معلومیږي . نو په پورته دریو شیانو کې که هر څومره نقص او یا جدت موجود وو په هماغه اندازه انسان د رالیږونکی د پوهی او فکری تمایلاتو په اړه مثبت یا منفی قضاوت کولای شي .

ځینو علماؤ ویلی دي : د انسان په پوهه باندې تر ټولو لوی شهادت له خلکو سره د هغه چلند ( حسن مدارات ) دي او له خلکو سره ښه چلند په ښو باندې د خدای " ج " د توفیق ځرګندوی دي . له نبی علیه السلام نه روایت شویدی " من حرم مداراة الناس فقد حرم التوفیق " ځوك چې له خلکو سره ښه چلند نه کوي هغه د خدای تعالی له توفیق نه بې برخې شو . سبحان الله . علماؤو د پورته حدیث ښه تشریح کړیده . هوښیار هغه څوك دي چې د خپلی زمانې له خلکو سره ښه چلند وکړي . رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : " جنت سل درجې دي . نه نوی درجې د پوهی او عقل د څښتنانو لپاره دي او یوه درجه د نورو ټولو خلکو لپاره " ( منتخب کنز العماك جلد ( ١ ) ٢٨٨ مخ ) یو ځل حضرت علی بن عبیده رحمه الله تعالی فرمایل : عقل پاچا او اخلاق رعیت دي . کله چې عقل د اخلاقو له لاربښوونی نه عاجز پاتی شی نو عقل ته نقصان رسیږي دا خبره یوه کوچنی واوریده او ورغبرګ یې کړ دا څو داسې خبره وه چې شهد ترې څڅیدل . علما وایي : د انسان د عمل واکی د عقل په لاس کې دی د یو چا پوهه د هغه له کړو وړونه ښه څرګندیدای شي . پښتو متل دی چې ډیر شی زهر شي یا ګندیر شي . خو عقل داسی څه دی چې هر څومره ډیر شي انسان باید بسنه پرې ونه کړي . هر شي یو ټاکلی حد لري خو عقل کوم حد نه لري البته په خلکو د ظرفیت توپیر شته .

## د عقل ماهیت ( څرنګوالی )

د عقل د ماهیت " څرنګوالی " په اړه د علماو اختلاف دي . یوه ډله وایي : عقل نور دي . ( نا ده خدای تعالی په طبعي ډول هست کړیدی . عقل داسې نور دي چې زړه یې تر وړانګو لاندې راغلی دي کټ مټ د سترګو د نور په څیر چې کمیږي . زیاتیږي او یا له لویه سره ورکیږي . او بیا بیرته راګرځی لکه څنګه چې سترګی د شکاره شیانو لیدنه او مشاهده کوی همدا راز زړه د عقل د نور له امله د ښو او ښکلو شیانو سپړنه کوی . د زړه رندیدا کټ مټ د سترګو د ړندیدا په څیر ده .

خدای "ج" فرمایي : (فانها لاتعمی الابصار ولکن تعمی القلوب التی فی الصدور . سوره الحج ایت ۴۶
امام اعظم ابی حنیفه "رح" وایي د عقل مرکز دماغ دي خو امام شافعی رحمه الله د عقل مرکز زړه بولی او د خدای تعالی دغه قول دلیل راوړی (فتکون لهم قلوب یعقلون بها . سوره الحج ایت ۴۶
او د خدای "ج" دغه قول : (ان فی ذلك لذکری لمن کان له قلب . سوره ق ایت ۳۷ مفسرینو دلته د قلب معنی په عقل سره کړیده یعنی د قلب نه مراد عقل دی

حکما وایی تجربه د عقل هنداره ده همدا لامل دی چي حکماو د سپین ږیرو داراو تعریف او توصیف کړیدی تر دي چي هغوی یې داسی ونی ګڼلی دي چي میوه یې فهم . تدبیر او د رایت دي . نه تړی کیږی او نه هم د زمان حوادث د هغو میوه غورزوی حکماو تولنه د مشایخو او سپین ږیرو نه په استفاده مکلفه کړیده او ویلی یې دي کیدای شي هغوی طبعا ذکاوت ونه لری خو زمانې هغوی ته دومره څه ورښودلې دي چي زمونږ د نسلونو پوره لاژبونه کولای شي . شاعر ویلی دي :

الم تر ان العقل زین لاهله
ولکن تمام العقل طولالجارب

ژباړه : نه ګوری عقل د خلکو له دي . خو د عقل کمال بیا اوږدی تجربی دي . عامر بن عبدقیس وایي : کله چي ته خپل په هغه څه پوه کړی چي ته نه پری پوهیږی نو پوه شه چي نه هوښیار یې . د محمد خان کلا یوه فیلسوسوف څه ښه ویلی دی کله چي ته عقل له هغه څه نه راوګرزولی چي هغه د بشری کرامت او مروت پر خلاف وی نو پوه شه چي ته هوښیار یې . یوه بل پوه ویلی دي . شرف نشته مګر شرف د عقل دي . یعنی عقل د انسان شرف دی او غنی نشته مګر غنی د نفس ده لاندی عربی شعرونه د ویلو دي

اذ الم یکن للمر عقل فانه
و
ان کان ذابیت علی الناس هین
و من کان ذاعقل جل لعقله
و
افضل عقل عقل من یتدین

هوښیارا و ویلی دي هوښیار سړی د غرړه په خیر دي په غره کي که هر ډول باد او طوفان پخپل ځای ولاړوی هوښیار سړی هم د وخت د سړو او تودو له امله نه خرابیږی او ناپوه سړی د بنګو د بوټی په خیر دی . د باد یوه کوچنی څپه یې په بل مخ واړوی . خلیفه منصور خپل زوی ته د وصیت په ترخ کي وویل له ماته دوه شیان زده کړه . خبری بی تفکره مه کوه او کار بی تدبیره .
اردشیر وایي . خلور شیان خلورو شیانو ته اړوی . حسب ادب ته ، خوښی امنیت ته ، خپلوی محبت ته او عقل تجربی ته . یو بل ایرانی یوه کسری نوشیروان ویلی دي خلور شیان له خلورو شیانو سره ښه دي له عقل سره ریاست . له رایی سره سیاست له علم سره نوروته کته رسول اوله حکم سره توپیر . قاسم بن محمد وایی : د چا چي عقل پرنورو خویونو غالب نه وی د هغه مرګ به د هغه خوی له لاسه وی چي پر نورو خویونو یې حاوی وی او هغه خوی ناپوهي ده ځکه کله چي عقل خپل حاکمیت له لاسه ورکړی نو حای یې ناپوهي نیسی . ځینو پوهانو ویلی دی : د عقل سردری شیان دی . له خلکو سره ښه چلند ، په خرڅ کي اعتدال او د خلکو ترمنځ محبوبیت . بل حکیم وایی ښه کامل عقل د هغه چا دی چي هوښیار سړی وپیژنی او قدر یې وکړی ، او څوك چي ځان تر نورو پوه وګڼی د هغه رایه باطله ده او څوك چي د هوښیارانو له مجلسه او دهغوی له مشورو نه بی برخی شي د هغه عقل ناقص دی حضرت عمر بن العاص "رض" فرمایي خوار هوښیار تر شتمن ناپوه ښه دی وایي هوښیار ته نه ښایی چي د خپلی سخی صفت د هغی په ژوند وکړی او د دودی صفت مځکی تر خوراك او په ملګری باندی هغه ته تر پوره ورکولو د مخه اعتماد وکړی وایی د هوښیار سړی غوسه د هغه له فعله څرګندیږی او د ناپوه د هغه له قوله یعنی د غوسي په مهال جیب وایی حضرت ابو ادرداانصاری رضی الله عنه فرمایی : ماته رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل عریمره ! عقل زیات کړه چي له خدای "ج" تعالی سره دی نژدیوالی زیات کړای شي ما ورته وویل زما مور او پلار دی درځار شي هغه څنګه ؟ ویې فرمایل : د خدای تعالی له محرماتو شیانو نه ځان وژغوره د الله تعالی فرایض پر ځای کړه په هغه صورت کي به ته هوښیار یې او ښه کارونه به کوی په دنیا کي به دی عقل زیات شي او خدای "ج" به دی ځان ته نژدی او عزتمن کړی ځینو علماو فرمایلی دي د نفس ژوند روح دي د روح ژوند ذکر یې د زړه ژوند عقل دی د عقل ژوند علم دي . د حضرت علی ابن ابی طالب (رض) دا لاندی اشعار روایت شویدی هغه به هم زیاتره وخت له ځان سره په ترنم کي دغه اشعار ویل :

ان المکارن اخلاق مطهره
فاالعقل اولها و الدین ثانیها
والعلم ثالثها و الحکم رابعها
و الجود خامسها والفرف سادیها
والبر سابعها والصبر ثامنها
والشکر تاسعها واللین عاشیها
والعین تعلم من عینی عدثها
ان کان من حزبها او امن عادبها
والنفس تعلم الی لا اصدقها

ولست ارشد الاحين اعصيها

ځيني حكما وايي : د هوښيارۍ نښه دانه ده چې څوك ښې جامې واغوندي او ږيره برابره او غوړه كاندي ځكه ډير داسي كسان دي چې جامې يې سپيني خوررونه يې تور وي . شيخ ابوسعيد الاصمعي رحمه الله فرمايي : په بعره كې مې يو شيخ وليد خو رانبې جامې يې اغوستي وي او وريښمينه چينه يې پرځان كړې وه په كجاوه كې سپور وو او شاوخوا تري ښكلي غلامان راتول وو . مايي د هوښيارۍ د اندازې د معلومولو هڅه كوله سلام مې پرې واچاوه او تري ومې پوښتل : زمونږ د سردار كينه څه دي !! ده په خواب كې وويل ابو عبدالرحمن الرحمن مالك يوم الدين . اصمعي صاحب وايي د شيخ له دغي خبرې سره جوخت ماته خندا راغله او پوه شوم چې ښه سم ناپوه دی او په دې مې عقيده شوه چې ډير هغه كسان چې د ډير مال دولت او شتمنۍ له امله په هوښيار او فاضل مشهور شوي دي د خبرو پر مهال يې اصلي څيره بر بنډيږي . رښتيا هم ډيره شتمني سړي عقل ته هيڅ ګټه نه سي رسولای .

وايي چې قاضي اياس بن معاويه ډيره پوه سړی وو . د عقل او فضل اواز يې تر لرې ځايونو رسيدلی وو . په بغداد او بصره كې د قضا پر منصب ناست وو نوموړی د خپلي هوښيارۍ او پوهې له امله ډيرو لوړو پوړوته رسيدلی وو لاندې كيسه د نوموړي په هوښيارۍ فضل او بلاغت باندې پوره دلالت كوي . وايي چې په هغه زمانه كې يو سړی په امانت كې ډير مشهور وو يوه بل سړي غوښتل چې حج ته ولاړ شي پريكړه يې وكړه چې خپلي د سروزرو له ښتو نه ډكه كڅوړه له امين سړي سره د امانت په ډول كيږدي كله چې نوموړی له حجه راستون شوله امين نه يې د خپلي كڅوړې غوښتنه وكړه امين سړي ايمان ته ګونډې وركړې او سكوت تري انكار شو د كڅوړې څښتن قاضي اياس ته عرض وكړ . قاضي تري وپوښتل ايا امين سړي خو به دلته ستا له راتګه نه وي خبر ؟ عارض وويل : نه ! قاضي ورته وويل اوس ولاړشه او په دې خبره څوك مه خبروه سبا نه بله ورځ بيا ماته راشه . په معينه ورځ د كڅوړې څښتن بيا قاضي ته راغی . قاضي دا ځل امين سړی هم راوغوښت او ورته يې وويل : ما ډير زيات قيمتي مال لاسته راوړيدی ما ستا د امانت ډيرې كيسي اوريدلي دي اوس غواړم چې هغه مال تاته امانت كيږدم . ته ولاړشه او د دغه مال د ساتني لپاره پر مضئون او پټ ځای جوړ كړه . امين سړی له دغه ځايه ولاړ او قاضي د هغه د تګ نه وروسته د كڅوړې څښتن راوغوښت او ورته ويې وويل . ولاړشه او له مدعی نه دې خپل مال و غواړه .

كه دا ځل يې انكار وكړ ورته ووايه چې راځه زه دې قاضي اياس ته بيايم ما او تايه خپل مشكل په هغه حل كوو . كله چې د كڅوړې څښتن امين سړي ته ورغی او خپل مال يې د قاضي اياس په وربښودلي طريقه ځيني وغوښت نو امين سړي بې له ځنډه هغه ته كڅوړه وروسپارله د كڅوړې څښتن قاضي له جريانه خبر كړ په سبا باندې كله چې امين سړی قاضي ته په دې تمه چې دهغه مال ور خوندي كړي ورغی نو قاضي اياس خو له وړباندې پرانستله اوښه يې سپك كړ او په دې ترتيب يې دغه لانجه غوڅه كړه . دا پيښه د قاضي پر اياس هوښيارۍ باندې پوره دلالت كوي .

وايي : د اسلام څلورم خليفه حضرت علي " رض " ته يو كس راغی او فرياد يې وكړ چې كور مې غلو وهلی دی . حضرت علي " رض " تري وپوښتل : غل پيژني ؟ سړي وويل نه ، حضرت علي " رض " ورته وويل شك دې په چا باندې راځي ؟ هغه سړي د څوكسانو نومونه واخيستل حضرت علي " رض " ورته وويل : اوس ولاړشه او سبا راشه حضرت علي " رض " هغه كسان راټول كړل راجلب يې كړل او د غلا په اړه يې تري نه پوښتني وكړې هغوی ټولو ترينه انكار وكړ .

حضرت علي كرم الله وجهه هغوی غافلګيره كړل او ويې فرمايل : غل زه ډير ښه پيژنم په ږيره كې يې خس نښتی دی اصلي غله سمدستي خپلي ږيرې ته لاس وروغزاوه او دهغي په كولو يې پيل وكړ علي " رض " سمدستي له هغه سره سپاهيان وليږل او د مدعي ټول غلا كړ شوی مال يې پرې راوړ او په غله يې شرعي حد تطبيق كړ . دغه لاندې واقعه هم په حضرت علي كرم الله وجهه پسې ډيره مشهوره شويده كه څه هم تاريخي سند يې شكمن دی خو كه له دغه نقص بې تير شو نو د اسلام د څلورم خليفه پر هوښيارۍ باندې پوره دلالت كوي . وايي : چې يوه كس حضرت علي " رض " ته عرض وكړ چې كور مې غلا وشو حضرت علي " رض " وفرمايل شك دې په چا راځي ؟ هغه ورته يو څو نومونه واخيستل . حضرت علي " رض " عارض رخصت كړ او شكمن كسان يې راجلب كړل . دتحقيق په وخت ټولو تورنو كسانو د جرم له منلو نه انكار وكړ حضرت علي كرم الله وجهه د مجرمينو له شمير سره برابرې لښتي راوغوښتې او ټولې يې برابرې ورسره پرې كړې كوم وروز يې پرې ووايه او پرې چوف يې كړل او هر تورن ته يې يوه يوه لښته وركړه او ورته ويې فرمايل لښتي چې درته دم كړې هر يوه كه غلا كړې وه سهار ته به يې د

خدای " ج " په حکم لښته د هغه نورو تر لښتو نه دري ګوتې اوږده وي . غله یې محبس ته واچول اصلي غله د شپې له ځان سره فکر وکړ چې کار څو کړی تا دی توحتما به دی سبا لښته تر نورو دری ګوتی اوږده وی راځه ورسره برابره یې کړه او چاقو یې پرې راوایست او خپله لښته یې دري ګوتی اوږد لنډه کړه سهار چې د حضرت علي " رض " په وړاندیز و درول شول او لښتې یې سره وکتې نو اصلي غله خپله لښته لنډه کړی وه سمدستي یې له غله نه د کور د ښتن سامان واخیست او په غله یې شرعي حد تطبیق کړ . د اسلام د ځینو خلفاؤ له وفات نه وروسته رومیان سره راټول شول او ویې ویل چې اوس خو مسلمانان پخپل منځ کې په شخړو بوخت دی راځئ چې د دوی له اختلاف نه ګټه واخلو او برید پرې وکړو او سیمې یې لاندې کړو . یو ډیر پوه وزیر ورسره اختلاف وکړ او ویې ویل دا ښه کارنه دی باید ونه شي هغوی ترې د علت پوښتنه وکړه وزیر ورته وویل چې سبا به مو په علت خبر کړم سبا ته چه وزیر غونډې ته حاضر شو دوهه سپې یې راوغوښتل او په خپل منځ کې یې په جنګ سره واچول سپو دومره سره وداړل چې یو بل یې وسلي ماتی کړی دا ځل وزیر یو لیوه پری وریربنود لیوه چې هغه غوښی ته چې د سپو پرې مناقشه وه ورنږدې شو سپو خپل اختلاف هیر کړ او په ګډه سره یې د لیوه په داړلو پیل وکړ . وزیر دربار ته مخ وراړاوه او ورته یې وویل چې زمونږ په وړاندې د مسلمانانو حیثیت لکه د سپو داسی دي که مونږ اوس برید پرې وکړو هغوی خپل اختلاف پریږدي او زمونږ دیکولو نه لاسونه یو کوي . دربار ورسره دا خبره ومنله دا درومې وزیر د پوهی یو مثال وو .

د عقل ضد حماقت دی . یعنی د پوهی ضد ناپوهی ده ناپوهي یو مرض دی او یوه بلا ده یو مصیبت دی . او یو ناسور ابن اعرابي فرمايي : چې حماقت له " حمقت المصوق " نه اخیستل شوی دی او دلته د کسار معنی ورکوی یعنی کاسد العقل وی او په هیڅ کار کې د فکر او مشورت پابندنه وی . ناپوهي یوه داسی پدیده ده چې هیڅ حیله ګټه نه شي ورته رسولای دا یو داسی مرض دی چې دوایي مرګ ده شاعر ښه ویلی دی .

لکل داء دواء یستطبه

الاالحماقه اعین من یداویها

حماقت او ناپوهي یو اټکل شوی توکی دی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : ناپوه سړی تر ټولو لوی خدای " ج " وهلی دی څکه الله تعالی خپل ګران توکي ( عقل ) نه دی وربانډی پیرزو کړی !! د ناپوه سړی څو صفتونه په لاندې ډول دی . ۱- د کار عواقب نه سنجوی . ۲- هغه څوك چې دی یې له سره نه پیژني د هغه د ثقه توب تضمین کوی . ۳- ډیری خبری کوی . ۴- ژر جواب ګرزوی . ۵- ښځوته ډیر ګوری ۶- سپك ګرځي . ۷- عجب او تکبر کوی . ۸- علم نه لري . ۹- له خپلو دندو او مسئولیتونه غافل دی ۱۰- چورت ډیر وهي .

چې غني شي کبرجن شي چې خواره شي مایوسه شي چې خبری کوی چتیات وايي چې سوال ترې وشي بخل کوی که له چا سوال کوی نو بې شرمي کوی . که خبری کوی بدوایي که څوك ورته خبری کوی نرنه پری پوهیږي . چې خاندی قهقهه کوی چې ژاړی ستونی شکي .

عیسی علیه السلام فرمايي : پتیه خو له د ناپوه خواب دی ځینی پوهان ناپوه له تیږی سره تشبیح کوی څکه وايي " حجربالحجر " یعنی تیږه په تیږه .

کیسه ده وايي : دوه ناپوهان په لاره سره ملګری شول یوه دا بل ته وویل راځه چې لاره په خبرو سره لنډه کړو او له خدای تعالی نه څه وغواړو بل ورته وویل : زه له خدایه د میږو یوه رمه غواړم چې له شیدو . کوچو او وړیو نه یې ګټه واخلم . هغه بل ورته وویل : زه له خدای " ج " نه دلیوانو رمه غواړم چې ستا میږی ټولی پرې وخورم هغه بل ورته وویل : خدای دی عزت کړه دغه ستا ملګرتیا او خپلوی ده او پخپلو کې سره ونښتل او یوه بل ته یې زنځیرونه کش کړل تر دې چې پریکړه یې وکړه چې له لمرختو وروسته که له هر چا سره لومړی مخامخ شو فیصله به په هغه کوو . هغه وو چې له یوه سپین ږیری سره چې په خره سپور وو مخامخ شول سپین ږیری له ځان سره د شاتو دوه توبرې هم په خره بار کړی وې دوی سپین ږیری ته خپله شخړه بیان کړه سپین ږیری چې د دوی احمقانه شخړه واوریده ډیر یې وخندل او له ځان سره یې دا ټکی زمزمه کول .

د یوه چا په بې عقلی باندی تر ټولو لوی دلیل نور څه کیدای شي چې د نعمت له لاس ته راوړلو نه یې مخکې یوه بل ته ځنځیرونه کش کړی وی .

اخځلیك


۱- المستطرف فی کل فن مستظرف " لحافظ کمال الدین محمد بن موسی الدمیری - دارالکتب انقلیه یروت ۱۹۸۷

۲-تازیخ بغداد " لخطب البغدادی دار الکتب العلمیه بیروت ۱۹۹۶ .

۳-معجم البلدان یاقوت حموی دارالنشر بیروت ۱۹۸۲

۴- معجم الادبا پورتنی لیکوال ۱۹۸۶ .

# "شهرت ننګیال" او د امریکایي سفیر د مېرمنې فتوا

سردار محمد "شکیب"

په پېښور کې یوه دوه میاشتنۍ خپرونه ده چې "ګوربت" نومېږي پر دې مجله باندې لیکل شوي دي "دا یوه آزاده، خپلواکه او ناپیلې خپرونه ده" که څه هم له دې ټکونه داسې ښکاري چې هر څوك کولای شي د خپل قلم خوږې او ترخې پکې کمپوز کړي، او د خوږو او ترخو اغېز یې پر "ګوربت" نه بلکه د لیکوال او لوستونکي سره تړاو ولري. خو عملی نه برېښي ځکه چې د "ګوربت" غښتلي د دې مقالې په خپرولو کې یو خل و ازمویل شول. هو! د ماما د لیکنې لپاره: تیاره او ناپیلې ده. د ماما (ننګیال) مقاله خو که څه هم پر یو نظام او حتی ځینو ځایونو کې اشاره اسلامي احکامو باندې انتقادات وو. خو د خوریی (غښتلی) په مجله کې ښه په پراخه تنده خپره شوه. ولې د هغه د لیکنې د سالم او معقول ځواب لپاره پکې ځای نشته.

حفیظ الله غښتلی چې د ګوربت مشر دي وحدت صاحب له نژدې ورسره پېژني. د دې مقالې په اړه یې ورته ټیلفون وکړ محتوی یې ورته وویله. غښتلی صاحب هم د خپرونې د ناپیلتوب پر اساس خپله غښتلتیا وښودله او د خپرولو یې ټینګه ژمنه وکړه. خو وروسته یې قول او عمل بیل ځرګند شول. په هر حال اوس به مطلب راوسپړو.

څه موده وړاندې د دې مجلې (ګوربت) د لومړی کال شپږمه ګڼه لاس ته راغله. سر تر پایه مې ترسترګو تیره کړه. یوه مقاله مې په دقت سره پکې ولوستله چې د سرټکی یې وو: "زما د باغ ګلونه د بل غاړه کې ځنګېږی" دا مقاله زموږ د وطن یوه نامتو لیکوال (شهرت ننګیال) لیکلې وه. د "ننګیال" له نامه سره به ښایي ډېر لوستونکي اشنا وي ځکه په ډېرو سانسورو او غیر سانسورو خپرونو کې یې یو د بل نه متضادې لیکنې ترسترګو کېږي.

اوس به راشود هغه مقالې ته. ننګیال "صیب پخپله لیکنه کې څو لاندې توکي رانغښتی وو. لومړی یې د پاکستان او د هغه ځای د وچکالی ځپلو په اړه د تلویزون په استناد یو رپوټ وړاندی کړي وو. ده د خپل رپوټ په یوه برخه کې داسې ویل: "د پاکستان تلویزیون له خبری سرویسونو پرته ځانګړي پروګرامونه خپروي، په دغو پروګرامونو کې لومړي د ځپل شویو سیمو ژوندی تصویرونه ښودل کېږي. چې ځرنګه وګړي او سیمه د دغې غمیزې په منګلو کې ښکیل ده. ورسره د حکومتي تدبیرونو او لارو چارو په اړه مستند فلمی او تصویری لړۍ پرسکرین وځلېږی. بیا نو له خلکو او نړیوالو موسسو غوښتنو او اپیلونو ته وار ورسیږۍ" په بل کالم کې وایي: "د افغانستان تلویزیون نشته، په کابل کې اوس اخبارونه هم د ساکښو تصویرونه نه خپروي. ځکه خو سړی نشي ویلای چې دغه سیمې به څونې ځپلي شوي وي، او حکومت به څومره مرسته په کومو لارو چارو ورسره کړي وي. دا کار به ځکه نه وی ترسره شوی چې پر تلویزیون او تصویر لا د ناروا ټاپه لګېدلې. دغسې ټاپه څومره خطرناکه ده. خدای دې ترې ساته. تصویر لا او تلویزیون زموږ په هیواد کې ګناه ده

دا یوازنی هیواد دي چې تقوا یې دې
کچې ته رسیدلې . چې له تصویر او
تلویزون نه مخ اړوي او له ګناه یې
اوړي سپکې ساتي .
محترم " تنګیال " صاحب پخپل
پورتني رپوټ کې دوې خبرې ځای
کړي . یو دا چې د هیواد واکمن (
طالبان ) یې په دې ملامت کړي چې
ولې یې پر تصویر او تلویزیون د ناروا
ټاپه لګولې ؟ او بل دا چې له
وچکالۍ ځپلو سره یې مرستې نه دي
کړي . ځکه چې دي وایي . ما د
تلویزیون پر سکرین دا مرستې نه دي
لیدلې . په پاکستان کښې چې مې
تلویزیون ولیدي او د حکومتي
چارواکو د تدبیرونو په اړه مې د
هغوی فلمونه او تصویرونه وکتل نو
پوه شوم چې مرستې یې کړیدي . دا
چې " تنګیال " صاحب د یوه
پاکستاني فلم د لیدلو نه وروسته
پخپل هیواد کې د تلویزیون ضرورت
احساس کړي او د هغه شرعي
محظوریت او زموږ د مملکت د دې
په ګیډه وړو خلکو حالت یې له یاده
وتلی او یا یې له پامه غورځولي دي
نو له همدې امله یې تصویر او
تلویزیون ته ناروا ویل ، استهزاء د
لوړې کچې تقوا بللې ده په داسې
حال کې چې د نړۍ غښتلي یاران !
هم طالبان په دې وجه غندي چې
دتلویزیون او تصویر د ناروا پر خانه
یې دستخط کړي دي .
" تنګیال " صیب د پاکستان د
تلویزیوني چینل څخه یو بل په زړه
پورې پروګرام کتلی ، دي وایي : " د
پاکستان تلویزیون یو ځانګړي
پروګرام خپور کړ ، دا وچکالۍ ځپلو
ته د مرستو راغونډولو یو بل کمپاین
و ، یوه سندرغاړې یې زموږ د هیواد
" هما " وه چې د پښتو سندرو اردو
ژباړه یې هم خپریده چې له سلو
میلیونو نه زیاتې پیسې یې وربانده
ترلاسه کړې . " تر دې یې لا په زړه
پورې پروګرام دا لیدلی چې دي ،
وایي : " تېر کال چې پاکستان د
اټومي چاودنو لومړۍ کلیزه لمانځله
، ... نو ځانګړې میلمنه یې زموږ د
وطن " نغمه " وه ... "
داسې ښکاري چې لیکوال له دې
پروګرامونو ته خوړیدلی هم دي او
خوند یې هم ترې اخیستی دي ځکه
چې دي د هغو خاطرو یادونه کوي
چې د پاکستاني تلویزیون پر سکرین
یې د وطن سندرغاړې په ګډا ولیدلې
چې هغه وربانده وچکالۍ ځپلو ته
پیسې ټولوي . نو دلته لیکوال پر دې
خفه کیږي چې ولې یې دا ډول صحنه
پر پردي تلویزیون ولیدله ، او دا چې
همدغه مهال نوموړي په وطن کې د
تلویزیون اړتیا احساسوي ، ترڅو دا
ښکلې منظرې پر خپل تلویزون ووینی
نو داسې ښکاري چې پروګرام ورته
ډیر مزه دار څرګند شوی دي
نوموړي لیکوال وایي : " چې زموږ
خو لومړی څوك په دې نه پوهیږي
چې د وچکالۍ د ناوړه اغیزو ګراف
څومره دی ، کومې ستونزې یې
رامینځته کړي ، خلك یې څنګه او
څومره ځپلي دي . ولې چې دلته
تلویزون د ګناه په ځنځیرونو تړل شوي
دي .
" تنګیال " صاحب د هغې غونډې
یادونه کوي چې پر ۱۳۶۹ کال د
جهاد د ثقافتي شورا له خوا د
تلویزون په اړه شوي و : دی وایي په
هغه سمینار کې هم ډول ډول بحثونه
او خبرې وشوي . خو په اخیر کې په
اسلام آباد کې د امریکا د سفیر (
رابرت او کلی ) مېرمني وینا لرله چې
ویل یې : تلویزون هغه ، دغه ، نورې
او نورې ګټې لري نو ځکه خو تاسې
باید په پخپل هیواد کې تلویزونی
چینلونه فعال کړي .
"تنګیال " صاحب چې د جهاد د
ثقافتي سیمینار د نورو غړو نظرونه
چې ممکن احادیث او د فتاواوو
عبارت به پکې راتلل ، نه دي
راسپړلي ، له هغوی نه یې صرف نظر
کړي او یوازې د رابرت او کلې د
مېرمنې فتوا یې د تائید وړ بللې ده ،
نو ځکه یې دلته هم تلویزون او
تصویر ته ناروا ویل بېځایه تقوا
ګڼلې ده . اوس خو دا خبره بیل بحث
او جدا ځای غواړي چې له تنګیال
سره د تلویزون په اړه د کتابونو او
فتاواوو لمخې خبره وشي . پاتې شوه
د مرستو خبره ، وایي چې له
وچکالۍ ځپلو سره به د واکمنو لخوا
مرستې نه وي ترسره شوي ځکه چې
چا تر اوسه د تلویزون له لارې نه دي
لیدلي .
زه باید ووایم : افغانستان چې ټول
وچکالۍ اغیزمن کړي او د پاکستان
ځیني سیمې یې متاثره کړي ، ټولې
هم نه . خو په پاکستان کې سره د
دومره امکاناتو او د دومره پیسو چې
د تلویزون له لارې زموږ د وطن د

بنځینه سندرغاړو پر نڅا برابریږي .
بیا هم د وچکالۍ له لاسه د بلوچستان د چاغۍ او ځینو نورو سیمو کې خلکو خپل ژوند له لاسه ورکړ . ولې برعکس زموږ د هیواد واکمن ( طالب ) په داسې حال کې چې د نړۍ د بدمعاشانو د سترګویو زهرجن اغزي دي . یوه نه بله ورځ ورباندې نوي تعذیرات په دې تور لګوي چې ته یو داسې مسلمان یې چې تصویر او تلویزون دې نه خوښیږي . بیا هم د خپلو ناچیزو امکاناتو امداد او مرستې یې د خپلو وچکالۍ ځپلو او دربدرو هیوادوالو نه نه دي سپمولې اودا چې " تنګیال " صاحب وایي : چارواکو کومې مرستې کړې او کومې خواته یې په مرستو راټولولو پسې منډې کړیدي .
زه به په لنډ ډول د هغو مرستو او منډو ترړو یادونه وکړم چې ماته معلومې دي . ورم کال چې پر میدان وردګ باندې زلزله راغله او څه د پاسه ۵۰ تنه یې ووژل . عالیقدر امیرالمؤمنین له زلزله ځپلو سره د ( ۵۰۰ ) میلیونو پاکستاني کلدارو معادل نغدي مرستې وکړې چې د وزیرانو د یوه تن له لوري ورباندې ووېشل شوې . همدا تېر کال یې د کابل پر غریبو ښاریانو ۲ میلیارده افغانۍ وویشلې . په روان کال کې چې وچکالۍ ډېر زور واخیست خصوصا په جنوب لویدیزه ساحه کې دریګو په سیمه کې کوچیان او نور هیوادوال له زیاتو کړاوونو سره مخ شول . امارتي چارواکو د هغوی دانتقال تابیا وکړه او په هلیکوپترونو کې یې له دې خوا نه اوبه او خواړه ورته رسول . له هغې خوانه یې هغوی کندهار او خواوشا سیمو ته را انتقالول . دغه مهال په میلیونونو پیسې او له ۵۰ نه تر ۶۰ زرو لیترو د هلیکوپترونو تیل مصرف شول .
همدارنګه د هیواد په لویدیز کې د وچکالۍ ځپلو سره د مرستو لپاره د امیرالمؤمنین په امر د تنظیمیه رئیس او هرات والي ملا خیرالله " خیرخواه " له لوري د ۱۶۰ زرو لکو افغانیو غنم پیرودل شوي او ورباندې وېشل شویدي . همداراز د مرستو دا لړۍ په هره ساحه کې جریان لري چې موږ د بیلګې په توګه د دې یادونه وکړه .
د امارتي چارواکو سفرونه چې د مرستو د راټولولو پخاطر شوي : تېر کال د افغانستان د اسلامي امارت رئیس الوزراء الحاج ملا محمد رباني ۳ خله عربي هیوادونو ته سفر وکړ تر څو له عربي واکمنونه د وچکالۍ ځپلو مرستې وغواړي د سرې میاشتې د عمومي رئیس په سرپرستي هم ځینو خواخوږو هیوادونو ته لکه متحده امارت ، پاکستان او داسې نورو ته په دې غرض سفرونه تر سره شول .
همدارنګه په دې وروستیو ورځولې د سرې میاشتې دعمومي ریاست مرستیال بنګله دیش او سریلانکا ته په سفر ولاړ چې هلته یې د سرې میاشتې په نړیواله غونډه کې ګډون وکړ او د افغانستان د کړاوونو رپوټ یې نړیوالو خیریه مرستنوویانو ته وړاندې کړ . همداراز په لسګونو رسمي مکتوبونه د امیرالمؤمنین او نورو لوړ رتبه چارواکو له لوري اخوا دیخوا استول شوي دي چې څومره مرستې لاس ته ورباندې راځي . هغه په مستحقو خلکو ویشي .
" تنګیال " صاحب وایي : په ۱۳۵۰ کال کې پر وچکالۍ ځپلو باندې د مرستو توزیع په سمه توګه نه وه ترسره شوې . نو د وخت د صدارت مرستیال خپله استعفی وړاندې کړه .
د " تنګیال " صاحب پر دې خبره نو چاته هغه لطیفه وریادیږي چې وایي : " له یوه سړي نه چا پوښتنه وکړه چې ګوروانې دي ولې پرېښوده ؟ ده ورته وویل : چې توکان ( ډوډۍ ) مې نه بس کیدله . لومړي کښ ورته وویل . اوس به دې توښه بس شي چې ګوروانې دې هم پریښوده .
هغه ورځ چې په کندهار کې پر غریبانو غنم او نور خواړه ویشل کیدل . نو د کندهار والي ملا محمد حسن " رحماني " چې د تېر جهاد پر مهال زخمي شوي او یوه پښه نلري . پخپله د مرستو د ویشلو په پروګرام کې ولاړو .
" تنګیال " صاحب مخکې نور هم څې او وایي : " دلته چې کوم طبیعي مصیبت راځي نو ټول پر خدای وراړول کیږي . ځکه چارواکي دومره خان نه خوځوي . دوی په دې اند دي چې الله تعالی د کب په ګېډه کې هم خپل بنده ته رزق او ژوند ورکولای شي . وچکالۍ ځپلو نه به روزي څنګه ورنکړي .
د " تنګیال " صاحب له دې تورونه دوه مطلبه څرګندیږي : یو دا چې طبیعي مصیبت پر خدای ور اړول په

دي معنی چې خدای "ج" ورباندې پر
ګنل (العیاذ بالله) دا د مسلمان د
عقیدې زیږنده نه ده . د مسلمان
هیڅکله دا شان نه دی چې الله تعالی
دې د یو مصیبت په راوستلو ملامت
کړي.

او بل دا چې د مصیبتونو موجد
چارواکي ګڼل . د خدای "ج" له لورې
یو ازمویښت نه ګڼل . هم هغه څه دي
چې مسلماني عقیدې ته درنه ضربه
ورکوي. په دې کې هیڅ شك او شبهه
نشته چې وچکالي ، زلزلې او نور ...
ټول د الله تعالی له لوري پر
مسلمانانو د امتحان ، توبې ایستلو
او الله تعالی د نورو پټو حکمتونو له
کبله رانازلیږي . هو! د دې لپاره چې
دی وایي : "بنده هم مکلف دي چې
لاس تر زنې کښیني "موږ پورتنۍ د
بنده هڅې د بیلګې په توګه یادې
کړې .

"ننګیال" صاحب بل ځای په اخیرنی
کالم کې راوړي : "جنرال مشرف یو
ځانګړی صندوق پرانیستی چې
مرستې راټولی کړي ، لومړی یې
خپله یوه میاشتنۍ تنخوا صندوق ته
وروغورځوله ، بیا د کابینې غړو او
نورو چارواکو دغه لړۍ پسې وغځوله
"لیکوال زیاتوي چې په افغانستان
کې څکه لوړ پوړي چارواکي دا کار
نه کوي چې د تنخواګانو رازونه یې
افشا نشي "

په دې خبره هر څوك پوهیږي چې په
افغانستان کې اقتصاد اوس د صفر
نه ۵ صفره اوښتی دی . له همدې
امله د حکومتي کارکوونکو
میاشتنه تنخواګانې دومره دي چې
ایله د یوې یا دوو ورځو کفایت
وکړای شي .

یوازې وزیران او ځینې نور لوړ پوړي
چارواکي دي چې میاشتنی معاش
یې لس لکه او نوی لکه یې اعاشه ده .
چې هغه یې د کورنۍ غړي او د
حویلۍ ملګري مامورین د یوې
میاشتې خوراك ، څښاك ورباندې
برابر کړي ، په داسې حال کې چې د
پاکستاني واکمنو تنخاګانې د سلو او
دوه سوو زرو کلدارو تر منځ خبرې
کوي . نو تاسې ووایاست ، طالب که
صندوق هم پرانیزي او دا د ګوتو په
شمیر چارواکي چې دا خپله پورتنۍ
دبله میاشتنۍ اعاشه ورتیل وهي او
پخپله میاشت په نهاره تیره کړي ، دا
به هم د دې دومره محتاجانو یوه
اندازه کفایت وکړای شي ؟!

او په دې خبره کې هیڅ چاته اشتباه
نشته یوازې لیکوال دي چې دا مارنۍ
چارواکو تنخوا د رازونو او اسرارو
یوه برخه بولي دا څکه چې نوموړی
لیکوال ته به د جهاد په دوره کې "
مولوی جلال الدین حقاني "پر سپین
چیك امضا کوله . د اطلاعاتو او
کلتور وزیر (متقي) صاحب به ورته
د یو نامتو جهادي لیکوال په صفت
په زرګونو کلداري د تنخوا او حق
الزحمې په نامه ورکولې او په فوق
العاده ډول یې پخپله امیرالمومنین
ته وراندیز راووړ چې یو موټر ورته
منظور کړي . هغه وچې موټر د
لیکوال لاس ته ورغی او ویل کیږي
چې څه موده وروسته یې د څو
شخصي پیسو په بدل کې تر لاس تېر
کړ . چې په دې سره یې د کوڅه واکې
د پېر دود راژوندی کړ . او د یو
جهادي لیکوال په نامه یې د سالم
انتقاد او مشورې تر نامه لاندې خپلو
چارواکو ته د تلویزیون خاطرې
کمپوز او وړاندې کړې .

د دې لیکنې نه مطلب دا نه دی چې
ګویا د لیکوال ټولې خبرې بیځایه
دي ، ولې چې پر چارواکو یې ګوت
نیونه کړې ده ؟! بلکه د ده د لیکنې
هغه ټکې موږ یاد کړې چې داسې
ښکاري چې د هغو ټکو د لیکلو
انګیزه ځینې منفي او غیر ضروري
تاثرات وو چې لیکوال یې دې ته
هڅولی و چې په داسې حالاتو کې چې
نن د نړۍ کوز او بر ستمګران ، زموږ
د هدف قاتلان سره غاړه غړۍ شوي
او د ملګرو ملتونو د امنیت له
دفترداراتو نه پر سپین کاغذ په پټو
سترګو د لاسلیك اخلي . چې بیا هر
څه ورباندې لیکي هغه د افغانستان
پر پټه افغانانو ته رالیږي نو لیکوال
هم قلم را اخلي او په داسې څه باندې
کاغذ توروي . چې له واقعیت نه ډیر
لیرې وي . په اخیر کې باید ووایم چې
دا لیکنه زما پر "ننګیال" صاحب
انتقاد نه ، بلکه هغه تاثر مې څرګند
کړی چې ما د ده له لیکنې نه
اخیستی و

ستاسې فکر چې هر څه وي تاسو
هماغه یاست هیڅ امکان نلري چې
څوك له خپل فکره لوی شي یاد فکر
له حدودو څخه تجاوز وکړي

مترلینګ

# د امریکائي څیړونو نیوزویک او ټائمز څیړنې

د نیویارك په نیوزویك ۱۸ مئ ۱۹۸۱ کې یو مفصل رپوټ خپور شوی چې د ګڼو څیړونکیو د څیړنو پایلې پکې راغلې دي د نارینه او ښځي د جوړښت او خلقت له مطالعې وروسته څیړونکي دې پایلې ته رسیدلي دي چې نارینه پښې په ډیره ښه توګه حل کولای شي او ښځې په فطري توګه جذباتي او پارونکي وي او هلکان له نجونو څخه په لوبو کې تیز او زړه ور وي په سپورتي لوبو کې نارینه له ښځو مخکې دي دا توپیرونه ټول فطري او خلقي دي او څیړونکي په دې اند دي چې په نارینه وکې د مشرتابه ځانګړني او خصوصیات Capacities Leader ship زیات دي . نوي څیړنې خلك دې ګروهې ته رابولي چې د پخواني نظریې په خلاف روزنه ( Nurture) نه بلکه فطرت ( Nature) یواځنی لامل دی چې په نر او ښځه کې یې توپیر رامنځته کړی .
په ټولیزه توګه منل شوې چې د جنګ او جګړو ورتیا د ښځو په پرتله په نارینه وکې زیاته ده څیړونکي وایې چې د دواړو هارمون ( Harmone) بیل بیل دی او دا اختلاف د دواړو په منځ کې د توپیر راوستلو له پاره مهم رول لوبوي ځینو څیړونکیو د نر هارمون د ماده په بدن کې داخل کړی
نو د ماده په بدن کې د نر ځانګړني او خصوصیات ښکاره شوي دي .
له دې نه مخکې د امیرکایوي اونیزې مجلې ( ټائم ) ۱۵ مارچ ۱۹۷۲ په دې موضوع باندې یو سپړلی رپوټ خپور کړی و د مجلې له پراخه اداري هیئت څخه ۲۰ تنه تعلیم یافته ښځې ټاکل شوي وي ، چې د هغوی د نوي امریکا دښځو د حالت جاج واخلي دوی په هر ډګر کې څیړنې وکړي او د هري ځانګې له ماهرینو څخه یې مرسته ترلاسه کړه . له دې ورسته هغوی یو مفصل او سپړلی رپوټ تیار کړ چې بیا په دې اونیزه مجله کې د خصوصي نمبر په توګه خپور شو . د دې رپوټ لنډیز دا دی چې د سائنس د ټولو اړوندو څانګو له څیړنې سره سم نر غالب او پیاوړی جنس ( Dominant sex) دی . د ټائم په دې رپوټ کې ویل شوي چې سلو کلونو هڅو او کوښښونو سره امریکائي ښځې اوس هم په هغه حالت کې دي چې سل کاله پخوا وي . او نارینه اوس هم غالب جنس دی " دلته به مونږ د خپلی



سپیڅلی گروهی تیره خبره ورضم کړو چې په سوونو کلونه پرې تیرشوی خو د نوی سائنس تازه رپوټونه یې له ډیرو ځیرنو وروسته راباسی چې د هغه ( الرجال قوامون علی النسا ده )

او نوی ځیړنی یې په ( Dominant sex ) ( غالب جنس ) سره ژباړی ".

یو روسی سائنس پوهه انتون نملوف ( Anton Nemilov ) چې د نر او ښځی د مساوات کلك پلوی هم پدې خبری اعتراف کوی چې په بیالوژی کې زمونږ د موخی ( د نر او ښځی مساوات ) اساس نشته همدا لامل دې چې تر نن پوری ښځه له نارینه سره په عملی توګه نده برابره شوی . انتون سائنس تجربې وړاندی کوی او لیکی : که نن دا وویل شی چې ښځو ته دی د تمدن په اډانه کې محدود حقوق ورکړ شی دا به نارینه تائیدوی خو مونږ یې سخت مخالف یو . خو ځانونه باید په دې خبره د هوکه نکړو چې د نر او ښځی په عملی ژوند کې برابری څه ساده اسانه خبر ده .

په ټوله نړی کې به د نر او ښځی د مساوات له پاره دومره کارنه وی شوی لکه په روسیه کې چې شوی دی په یوه ځای کې به هم دومره بی تعصبه او سخاوت مندانه قوانین نه وی جوړ شوی لکه په روسیه کې . خو حقیقت دا دی چې په کورنیو کې د ښځو حالت بیخی لږ بدل شوی د ښځی او نارینه د نه برابری تخیل ډیر ژور دی د لوړ تعلیم لرونکی روسان هم دا تخیل لری چې په ښځو کې دا تخیل دومره ژور دی چې که چیرته له هغوی سره د پوره مساوات سلوك وشی نو دوی دا د نارینه د مرتبې ټیټ والی بولی .

که چیرته مونږ د کوم سائنس پوهه ، زده کوونکی ، تاجر او پاخه کمونیست د خیالاتو تجسس او پلټنه وکړو نو ډیر ژر به دا حقیقت راته څرګند شی چې هغوی له ځانه سره ښځه برابره نه بولی .

که مونږ د خپلی زمانې یا چاپیریال د کوم لیکوال څه کتاب وګورو که هغه هر څومره آزاد خیاله وی هم نو د دې تخیل غمازی به یې په لیکنو کې بیا مومو . )

روسی لیکوال د دې خبرو لامل د بیالوژی له نظره داسی لیکی (( حقیقت دا دی چې زمونږ انقلابی اصول له یوه واقعی صورت سره په ټکر کې دی . یانی د بیالوژی له نظره د نر او ښځی په منځ کې مساوات نشته او د دواړو پر وړو یو ډول بار نشی غورځیدلای . )) ازاد خیالی نړی د نارینه او ښځی تر منځ د مساوات کوښښونه وکړل او په دې کوښښونو په سلګونو کلونه تیر شول خو په خپله موخه کې تر ننه پوری بریالی شوی دی .

خو له بده مرغه چې د دې ازادی له کبله د خواهشو او بدلمنیو داسی تاوانونه راپورته شول چې مخ نیوی یې ناشونی دی . دې بدلمنیو او بیلاریو داسی وژونکی رنځونه وزیږول چې د نن پرمخ تللی طب یې له درملنی څخه عاجزه دی .

روسی لیکوال ښاغلی رنټون لیکی : " ربښتیا خبره دا ده چې په ټولو کارګرو کې د جنسی انتشار ( Sexual anarchy ) اثار په ښکاره کیدو دی او دا خورا خطرناك حالت دی او د سوسیالیست نظام د هلاکت پیلامه ده په هر ډول چې وی باید د دې حالت مخ نیوی وشی ځکه په دې محاذ کې جګړه کول زیاتی ستونځی لری .

زه د زرګونو داسی پیښو حواله ورکولای شم چې د شهوانی بی قیدی ( Sexual Licentiousness ) نه یوازی په ناپوهه او بی تعلیمه خلکو کې نه بلکه د کاریګرو په خورا لوړ تعلیم لرونکیو او مترقی خلکو کې هم خپره شوی ده " د روسی لیکوال په دې خبرو څه دپاسه او یا کلونه تیر شوی دی اما اوس چې جنسی انارشی کوم اوج ته رسیدلی ازاد خیاله نړی د هغوی شاهده ده . "

ځکه خو د جنوبی افریقی پخوانی جمهور رئیس نیلسن منډیلا په ډربن کې د ایډز په هکله دیارلسم کانفرانس کې وویل " چې زمونږ په ټولو خطرونو کې لوی خطر د ایډز ناروغی ده " په دی کانفرانس کې ۲۵۰ تنو سائنس پوهانو برخه اخیستی وه ښاغلی منډیلا سیاست والو او سائنس پوهانو ته ځولی وغوړوله چې نور اختلافونه شاته وغورځوی او د ایډز په خلاف یو موټی شی .

خو له بده مرغه چې ازاد خیاله نړی لا په خپل شامت نه پوهیږی ځکه دا تور پوستی مشر په دې کانفرانس کې وویل چې باید د جنسی اړیکو په مهال طبی قوانین په نظر کې ونیول شي د ایډز په هکله مونږ وروسته خبری لرو نور بیا .....



# د ګوتم بدهه بتان څه وخت او څنګه جوړ شوي وو

عين الدين

کله چې سکندر اعظم دهند د نیمې وچې د نیولو په نیت له یونان څخه خپل لښکر د اسیا په لور راوخوځاوه نو درې نیم سوه کاله قبل میلاد په بل روایت ۳۳۰ ق م یوناني لښکرې له هرات څخه راواوښتې او اوسنی شمالي افغانستان یې ونیو .

د سکندر له راتګ سره سم په افغانستان کې د بودايي مذهب اغیزې خپرې شوې په دې وخت کې د بودایانو او د مرکزي اسیا د خلکو تر منځ خونړې نښتې وشوې .

څو کاله وروسته بودایان ځواکمن شول او ځای پر ځای یې د ګوتم بدهه مجسمې او بتان ودرول . بامیان د بودايي مذهب د مرکز حیثیت غوره کړ تاریخي څیړونکي عقیده څرګندوي چې د بامیانو بوتان تقریبا ۱۷۰۰ کاله پخوا جوړ شوي دي دغه بتان چې یو یې ۵۴ متره او بل یې ۳۳ متره جګوالی لري د غرونو له تیږو څخه جوړ شوي دي .

څه د پاسه دیارلس نیم سوه کاله مخکې افغانان د اسلام په مقدس دین مشرف شول او د دغو بتانو سپیڅلتوب له منځه ووت . د اسلام د مقدس دین په راتګ سره په افغانستان کې ډیر ستر عالمان پیدا شول له دغو علماو څخه مشهور علما عبدالوحید ، احمد بن ابوریجا چې د امام بخاري استاد وو او نورالدین عبدالرحمن جامي . دې دواړو عالمانو د بتانو ساتل حرام وګرزول پر افغانستان باندې د روسي لښکرو د یرغل په نتیجه کې زیاتره هغه لرغوني اثار چې د اسلامي هنرونو ، فنونو او طرز تعمیر نماینده ګي کوله له مینځه ولاړل .

د بودايي اثارو په هکله باید وویل شي چې دغه اثار زیاتره په شپږمه میلادي پیړۍ کې منځ ته راغلي دي .

لرغون پیژندونکي وایي چې دغه اثار دیوناني لاسي هنر هغه پاتې انځورونه دي چې نمونې یې اوس د اتن او د یونان په نورو موزیمونو کې موندل کیږي . د ډبرو او کانو د توږلو او وصیقل کولو صنعت د یونان د لرغوني فرهنګ اختصاصي هنر وو . چې دنیایې سیالي نه شوای کولای یونانیانو له تیږو او کانو څه ځینې جګړه ایزه ابزارهم جوړول چې زغرې پکښې مشهورې وې . بامیان په مرکزي اسیا کې د بودایزم ډیر لوی مرکز وو . بامیان له کابل څخه ۲۰۵ کیلومتره لیرې د شمال غرب په یوه څنډه کې پروت دي او د سمندر له سطحې څخه څه د پاسه ۸۲۰۰ فټه لوړ دی دغه ښار د بلخ او ټیکسلا د لویې لارې پرسر پروت وو او د مرکزي اسیا کلتور یې د ګندهارا له کلتور سره نښلولی و . په بامیانو کې کاروان سرایونه او د مسافرو د دمې کولو ډیر ځایونه جوړ شوي وو په تیره زمانه کې چینایي کوریایي او جاپاني بت پرستان د جاهلانه عبادت لپاره راتلل او د بامیانو په غرنیو غارونو کې به یې شپې سبا کولې .

فرانسویانو په ۱۹۲۲ع او ۱۹۴۵ ع کال کې د بامیانو د بودايي اثارو په هکله پراخې څیړنې او تحقیقات تر سره کړل . فرانسویان د خپلو څیړنو په ترڅ کې دې نتیجې ته ورسیدل چې ۱۲۶ فټه لوړه مجسمه د دریمې میلادي پیړۍ په پنځمه لسیزه کې جوړه شوې ده .

۱۷۵ فټه لوړه مجسمه بیا د پنځمې عیسوي پیړۍ په پیل کې جوړه شوې ده . البته د فرانسویانو له دې خبرو او نتیجو سره بیا نور لرغون پیژندونکي مخالف دي . د بامیانو په لرغونو اثارو کې ځینې داسې شیان هم شته چې د شپږمې او اومې عیسوي پیړۍ د ساساني او کوشاني تهذیب د اثارو ګمان پرې کیږي .

تاریخ څیړونکي وایي : چې د ساسانیانو او کوشانیانو دوره له دریمې عیسوي پیړۍ څخه تر اوومې عیسوي پیړۍ پورې غځیږي په بامیانو کې چې کوم اثار تر اوسه کشف شوي دي . په هغو کې د اروپایي هندي اریایي تمدنونو نښې او نښانې څرګندې شوې دي او د لرغون پیژندونکو لخوا تصدیق شوي هم دي .

باید وویل شي چې د ګوتم بدهه وروستي یادګارونه ۲۰۰۱ ع کال د مارچ په یوولسمه د یوې شرعي فتوې په حکم له مینځه ولاړل .

- انجنر شاه محمد -




میوه لرونکې ونې په لومړي وخت کې بدنـــی وده او وروســـته تولیـــدی وده ډیروي . ولـی پـه طبیعـی ډول سـره یې جنسـیت خـراب . د حـاصل او میـوې ورکولو دوره یې کمـه او همدارنـګه ښه تجارتي ارزښت هـم نلـري . د دې لپـاره چې د پورته ضررونو مخنیوی شوی وی کومې څانګې چې میوه تولیدوي هر کال باید تازه میوه منځته راشي چې دا کـار د څانګو پریکولو یا ښاخبرۍ ( Purning ) پواسطه ممکن بریښي .

ښاخبري د هارتیکلچر ( Horticulture) د نباتـاتو ( مختلفـی میـوې . ګلان او زینتي بوټي ) په روزنه کې یو عمده او ضروري عمـل ګڼل کیـږي . پـه عمومـی تـوګه پـه ښاخبرۍ کـې غـیر ضـروري . نـامطلوب ښاخونـه او څانګی لـه منځه ځی .

د څه لپاره ښاخبري کوو ؟

نباتات د لاندنیو اهدافو د لاسته راوړلو لپاره ښاخبري کیږي .

۱- د ښاخبرۍ پـه وسـیله ونـو تـه د هـوا جریان او لمر ( روښنایی ) د ننوتو زمینـه مسـاعده کیږي چې ، په دې کـار سـره لـه یـوه پلـوه د میـوو کیفیـت ( رنـګ او جسامت ) زیاتیږي او له بلې خوا د نباتي ناروغیو مخنیوی کیږي .

۲- پـه ښاخـبرۍ سـره د بدنـی ودی او حاصل تولید ترمینځ مناسبه موازنه جوړیږي . بوټي د ژر زړښت ( زوړوالی ) څخـه ژغـورل کیـږي او د اوږدې مـودې لپاره حاصل ورکوي .

۳- د ښاخبرۍ په وسیله سره د ونو هغه کمزوري او ناروغی څانګی لـه مینـځه ځی کومې چې د سوداګرۍ وړ حاصل د تولید توان نلري .

۴- د ښاخبرۍ پـه مرسـته ونـی لـه اوبـو څخه ګټوره استفاده کـوي او د زوجي او غیر زوجي ودی ترمنځ موازنه برابروي .

۵- په ښاخبرۍ سره د ونو تنظیمي چاري لکه درمل پاشل . د میوو ړنګی کول ( یکه کردن ) او راټولـول پـه آسـانی سـره اجرا کیږي .

ښاخبرۍ د بوټو بدنی ودی Growth پړاو ( مرحله تحرکوی او تولیدی پړاو یې ځنډوی د مثال په توګه که د یوه باغ ونی ځوانی او غښتلی وی پـه دې حـالت کـې ضروري بریښي چې ونی ډیری سپکی ښاخبري شی څکه چې زیاتـه ښاخـبري دغوټیو جوړښت ځنډوی . د بله طرفه که د یـوه بـاغ ونـی زړې او د زوره لویدلـی وی پـه دی صورت کـې زیاتـه ښاخـبري د ونـو پـه غښتلتیـا او بیرتـه ځوانـی کـې مرسته کوي .

<u>کومــی څانــګی او ښاخونــه بــاید پــرې شي ؟</u>

مخکی له دې چې د یوې ونی د ښاخونو پریکول پیل شی هغه باید په مکمل ډول وکتـل شـی . سره لـه دې چې د ښاخبرۍ پرنسـپونه . د چـاپیریـال دونـو جنـس او ډول د دوی طرز او عادت تغیر سره کوی بیا هم د ښاخونو پـه پریکولـو کې ښایی لاندنی ټکی په نظر کې ولرو .

۱ لومړی دی د ونو اوبو ټو څخـه وچ او ناروغه ښاخونه پریکړل شی .

۲- هغه عمده ښاخونه دی لیری شی چې د مرکزی ساقې څخه په تنګو زاویو سره راوتلی وی .

۳- کـه څانـګی نږدې او موازی وی بـاید چې د کمـزوری ودی څانـګی لـه منـځه یـووړل شـی . د دوو ( ۲ ) مـوازی څانـګو ترمنځ فاصله باید لـه یـو سـل او شـل ( ۱۲۰ ) سانتي مترو څخه لږ نه وي .

۴- د دووګونـو مرکـزی سـاقو مخـه دی ونیولـه شـی او ونـی دی پـه یـوې مرکـزی ساقی سره وروزل شی .

۵- د یـو زیـات شـمیر قسـمونو د ونـو دپاسـه دی د پراخـو زاویـو د ۴-۶ پـوری عمده ښاخونـه پریښودل شی . د ښاخي شاوخوا ښاخونو تر منځ فاصله بـاید د ۱۵-۳۰ سـانتی مـترو پـه انـدازه وي لاندنی عمده څانګی باید د مځکی لـه سطحی څخه د ۴۵-۶۰ سانتی مترو په اندازه لوړه وي .

۶- هغـه ښاخونـه پریکـول غـواړی چې د ونـو مرکـزی خواتـه وده کـوي او د هغـو څانګو د څوکو پریکول ضروري دي چې له نورو څانګو سره مداخله کوی

ښاخبري د ونـو د انکشـاف پـه لومړیـو کلنو کې پـه عمومـی وده . د ګلانـو پـه تولیـد او د ریښو پـه تشـکیل بـاندی د پاملرنی وړ اغیزه کـوي . د ونو دودی او انکشـاف پـه اتو ( ۸ ) لومړیو کلنو کـې ښایـی چې د منځنـی سـاقې او عمـده جانبی ښاخونو و تولید تـه زیاتـه پاملرنـه جلـب شـی . ښه دا ده چې پـه دې مـوده

کښي ونې سپکې ښاخبري شي . په دې توګه له يوې خوا د ونو د حاصل په توليد کې کوم خنډونه راځي او له بلې خوا د ونو د پورتنيو برخو او ريښو ( Roots) وده د داد وړوي .

***د ښاخبرۍ ډولونه :***

ونې په څو دولونو سره ښاخبري کيږي چې البته هر ډول يې د ونې په وده ( نمو ) او حاصل په توليد بيلې اغيزې کوي او هغه دا دي .

۱- د ښاخونو لنډول : په دې ډول ښاخبرۍ کې د څانګو او ونو ( څوانې لښتې ) سرونه پرې کيږي مګر بيخونه يې بايد پخپل حال پاتې شي .

۲- د ښاخونو رنګې کول : په دې طريقه کې مکمل ښاخ يا نوره له بيخ څخه پرې کيږي څکه چې ونو ته د لمر د رڼا د ننوتلو زمينه برابروي او بې حاصله څانګې به يې له منځه ولاړشي .

۳- د نويو ښاخونو پريکول : د دې طريقې په وسيله ورو ودې لرونکي ، کمزوري خوړند ښاخونه او د ټيټ کيفيت ميوه توليدونکي ښاخونه له منځه وړل کيږي د احالت په منو ( سيبو . کې د ليدلو وړ دي توليدونکي ښاخونه .

په جانبي څانګوکې دودې بدلون : د دې طريقې هدف دا دي چې د ونو لوړوالي د کنترول له حد څخه ونه وزي او د چګو ښاخونو سرونه د جانبي څانګو په عوض کيدو سره راټيټه شي تر څو د هغوی دواپاشنه د ميوو رنګې کونه . او د ميوو راټولول آسانه او اقتصادي تمام شي . په دې طريقه کښي ښاخونه په يوه غوره موقعيت کې د يوې مطلوبې څانګې سره موازي پرې کيږي مګر د ځينو څانګو سرونه ژخو ته تر دې بايد پرې شي تر څو د توليد شو و جانبي څانګو په مطلوب او ټاکلې سمتو لاره شي .

۴- د عمده ښاخونو په امتداد د کوچنيو ښاخونو پريکول : په دې طريقه کښي د يوه عمده ښاخ د پاسه ځای پر ځای کوچني ښاخونه په مناسبو موقعيتونو کې پريکول کيږي چې هدف د عمده ښاخ څخه د پاندې ښاخونو پنډوالی . او ګنوالی څخه ساتل دی تر څو د ونو مرکزي برخې د هغه تر ډير سيوري لاندې رانشي .

***د څانګو غوڅول :***

ښاخونه بايد په تيرو آلاتو سره له اصلي ساقې سره نژدې موازي او ښې پرې شي څکه چې زر روغيږي لوی ښاخونه بايد په داسې ډول د اصلي ساقې څخه پرې شي چې د ساقې پوستکي وانه وړي او هغه ښاخونه چې له ( ۳ ) دريو انچو څخه زيات قطر ولري بايد پرې شوی ځای يې د موم يا قير ( Asphalt ) پواسطه وپوښل شي د ونو په ښاخبرۍ کې له دري دوله سامان څخه استفاده کيږي .

الف : د ښاخبرۍ کوچنې غيچې ( بياتي ) : د هغو ښاخونو د پريکولو لپاره مناسبې دي چې پنډوالي يې يو سانتي متر وي .

ب : اوږد لاسي غيچې ګاني : د هغو ښاخونو د پريکولو لپاره استعماليږي چې قطر يې له ۱- ۲ نيم يوه څخه تر دوه سانتي متر پوري وي .

ج : د ښاخبرۍ اره چې د لويو ښاخونو په پريکولو کې ورڅخه کار اخلي .

***د ښاخبرۍ مناسب وخت :***

ښايي چې ښاخبري د ونو او بوټو د استراحت په وخت ( ژمي ) کې اجرا شي څکه په دې وخت کې پاڼې په ونو کې نه وي . د پريکولو وړ ښاخونه ښه ليدل کيږي . پوستکي په لرګي پوري ټينګ مښتي وي د باغ نوري تنظيمي چارې لږ وي او د استراحت په وخت کې ښاخبري د فعالې ودې په پرتله په ونو باندې کمه ناوړه اغيزه کوي هغه ځايونه چې خو راسوړ ژمي لري ښه به دا وي چې ښاخبري د ژمي تر پايه وځنډول شي څکه مختلفو تجربو څرګنده کړيده چې د سړو راتګ ونو ته زيات تاوان رسوي چې مناسب وخت يې له سړو څخه د خطر له منځه تللې دی . په ګرمو سيمو کې هم بايد د منطقې په د اقليمي شرايطو په نظر کې نيولو سره ښاخبري په ژمي کې صورت ونيسي . په واقعيت کې د پرې کړل شوو څانګو ټپو نه هغه وخت ښه روغيږي چې په سپرلي کې د ورې پيل کيدوته نږدې اجرا شي . که د پسرلي په لومړيو وختو کې زياته ښاخبري وشي ونې زياتې پاڼې او ښاخونه توليدوي چې ميوه به يې کمه يا هيڅ نه وي .

ځينې وختونه په اوړي کې هم غير ضروري څانګې کميدای شي که په دې وخت کې زياتې څانګې پرې شي په ونو کې تنفس زيات صورت نيسي په نتيجه کې ونه کمزوري او د ژمي لپاره هم غزائي مواد ذخيره کولای نشي .

د سترو سو ( مالټه . ليمو . نارنج . کينو . سنتره ) کورنۍ جنداني له ښاخبرۍ سره علاقه نه ښيي مګر ناروغې وچې او غير ضروري څانګې يې بايد د حاصلاتو تر ټولولو وروسته ( د دلو ۱۵ ننګرهار ) له منځه يوړل شي .

په اضطراري حالاتو کې ښاخبري د غو ټپو غوړيدو په وخت کې هم سرته رسيدلی شي .

څانګه به نن سبا کې ګل شي ما يې په سرکې سرې غوټې ليدلې دينه

# آیا تش په نامه لویه جرګه د افغانستان اوسني مشکلات رفع کولای شي؟

محمد ولي "ځلمي"

یادونه :

زما یو مضمون د "آیا تش په نامه لویه جرګه د افغانستان اوسني مشکلات رفع کولای شي ؟" د کندهار مجلې د ۱۴۲۰ هـ ق د ربیع الاول او جمادي الاول د میاشتې په دریمه ګڼه کې خپور سوي چې د موضوع ، حقوقي او سیاسي څیړنې ، افشایي او تحقیقي سبك او اسلوب له پلوه تامل او تفکر وړ او په ځینو برخو کې یې زه هم د هغه د بعضي مغلقو او پیچیده عباراتو او ترکیباتو د پوهیدلو څخه معذورګڼولی شوی یم نو ځکه د یو شمیر لوستونکو او علاقمندانو د پیرزویني او تینګار له مخې مې د دوهم ځل له پاره دغه مضمون یو ځل بیا تر نظر او تفسیر تیر کړي او په دې وسیله هیله لرم چې د محترمو لوستونکو د زیاتي استفادې له پاره یو ځل بیا د نشر او خپریدلو موقع ورته مساعده شي .

په درناوي

"ځلمي"

### د لوی جرګې تاریخی پس منظر ته یوه کتنه :

لویه جرګه یا مشورتي ټولنه د پخوانیو اریایي او قبایلي قومونو یوه ولسي غونډه وه چې په هغې کې به دولسي او اجتماعي مهمو چارو د حل او فصل کولو له پاره قومي مشران ، روحانیون او جنګي اتلان راټولیدل .

دغه ټولنه د آریایي قومونو د اجتماعي ژوندانه د تکامل په مسیر کې په بیلو نومونو لکه سبها ، سیتي او داسې نورو یاده سوې چې په دغه لړ کې یې یو نوم د لوی جرګې په نامه هم رایاد سوی دی .

زموږ د هیواد په ملي او سیاسي ژوندانه کې د کندهار د لویدیځې سیمې په شپږ میلۍ کې د کوکران نومي کلي د لوی جرګې ( ۱۱۲۸ هـ) او د کندهار د جنوبي خوا د شیرسرخ د لوی جرګې ( ۱۱۶۰ هـ) د جوړیدو خاطرې چې په هغو کې د افغانانو د دوو متدینو او مهذبو ملي قائدونو او سیاسي لاربښوونکو لکه میرویس نیکه او احمدشاه بابا د هغو د صادقانه او بې شائبه خدمتونو او فداکاریو په نسبت چې د ملي نوامیسو لکه اسلام ، ازادي او خاوري د ساتلو په لار کې د دغو جرګو د فیصلې له مخې ملي اقتدار او سیاسي حاکمیت ته رسیدلي دي ، تر اوسه د ډیرې یادونې وړ د لوی جرګې نوم زموږ د ملي او سیاسي ژوندانه د قاموس او کلتور مهم جز ګرځیدلی دي .

ملي کلتور ته نه پاملرنه او ملي ارزښتونو ته په بې اعتنایي کتل د استعمار او بدبختۍ سنګین عمل دی په داسې شان چې یو چاته د خپل ملت او هیواد هر شي سپك او غیرعملي وایسي او د پردیو دا درونـد او د اعتبار وړ .

د دغې مهلکې ناروغۍ څخه د خلاصیدو په غرض د دې دپاره چې زموږ ملي چارې د افغانستان د داخلي دښمنانو او خارجي یلغرګرانو او استعماري ګوداګیانو د توطئو او دسیسو څخه په امان پاته شي او دیني او دنیاوي نیکمرغیو دروازې مو پر مخ خلاصې شي ، باید د خپلې ټولنې ملي او تاریخي ساختمان ته چې د هغې په جوړیدلو کې دغو عواملو :

لکه د اسلام مبارك دین چې زموږ د خلکو د معنویاتو او اخلاقیاتو بنسټ اینښودونکی ، فلسفه او پوهنه چې زموږ د خلکو ذهني انکشاف او فکري رشد وړپوري ترلي ، تصوف او عرفان چې زموږ د خلکو د زړونو او

وسوسو زنګونه او خيرى تورى . اجتماعى عدالت او مساوات . ظلم او ناروا سره ملى جهاد چې زموږ د عقيدې او ايمان مهم جز دي مهمه برخه اخيستى ښه متوجه شو او د وخت د تقاضا سره سم قوم او وطن د نيکمرغى او ترقى په لار کې څرنګه چې ښايي استفاده څينې وکړو .

که څه هم لويو جرګو په هغه وخت کې چې ملوك الطوائيفو او خان خانيو رواج درلود او قبائلى مرکزى‌حکومتونه پياوړى نه وو . د قبيلوى اقتدار د عرف او عاداتو د پاللو . اجتماعى اوسياسى تشنجاتو د لرولو او د بيلو بحرانو د پيښيدلو د مختيولو د اجتماعى نيکمرغه ژوندانه د سلامتيا ساتلو له پاره مهمى چارې په سررسولى . د ملى‌وحدت . صلح او اجتماعى ثبات په قائمولو کې يې داساسى قوانينو په تصويبولو او د افغانى مرکبى جامعې د طبقو او افرادو ترمنځ د حسن تفاهم د بيلو وسيلو د برابرولو . د حاکمى طبقې او عام ولس تر منځ د ارتباطى وسايلو لټولو او د حاکمانو او پاچاهانو تصميمونو او اوامرو چلولو او د بيوزله ولسونو د خدمت کولو د امدادګى ښکاره کولو او په ټولنيز ډول سياسى قدرت ديو څخه و بل ته د انتقالولو په مورد کې د توجه وړ رول لوبولى او افغانى پوهانو او شاعرانو په څپلو اثارو کې د لوى جرګې اهميت او قدر ساتلى چې په دغه لړ کې هغه چا چې د افغان په ننګه توره تړلى . د قلم او تورى خاوند خوشحال خان ختګ د جرګې په ستاينه کې څه ښه ويلى دي :

د لمانځه تر قضاګرانه دا قضا ده
چې قضايي د څلورو مصلحت
نورانى کا هغه ځان چې سره کښيني
دبرينه څلور هوښيار په مشورت
په اخلاص چې په دعا لاسونه هسك کا
وربه پرانيست شى دفتح اونصرت بى
ګنګا شه چې هيڅ کار په لاس وانه خلي
چې خبر شى د ګنګاښ په برکت

ميرويس نيکه په خپلى شپږمى لوى جرګې کې چې په هغى کې د افغانانو يو شمير مشهوره ايمانداره او وطندوسته بهادر ميړونه لکه : سيدال خان ناصر . بابو جان بابى . بهادرخان اندړ . ملا پيرمحمد مياجى . عزيز خان نورزى . يوسف خان هوتك . ګل خان بابر نصرو خان الکوزى . يونس خان کاکړ او نور ننګيالى وطنوال شامل وو . جرګه داسې مخاطب کړه :

( د لوى او مهربان خداى په نامه ! ګرانو وطنوالو او خوږو ورونو ! يقين ولرى چې زما مطلب يوازى او يوازى ستاسو ازادى او خپلواکى ده . آزادى هغه بى بها نعمت دى چې د هغى د لاس ته راوړلو د پاره دا ټول چلونه او جنګونه روا ګڼل کيږى . ګرګين د له منځه ديوه سمت د کندهار د پښتنو له پاره چې تل بې له طاقتورو د غليمانو سره ډګرى وهلى او مقابله يې ورسره کړى ده د هغو لښکريې وتښتول چې د اصفهان له بيراګانو څخه جوړ شوى دي څه ګران کارنه ښکارى . عزيزانو که له ماسره لاس يو او متحد شى او زما ملا وتړى زه به انشاالله تعالى ستاسى له غاړى څخه د ذلت او مرئيتوب سنګين زنځير ليرى کړم . د آزادى او عزت جنده به مو د وطن په هر ګوټ او ټول جهان وريلوله شى . د پارس دروافضو د سلطى جوغ به مو له اوږو کښته شى پر خداى تعالى توکل وکړى . زړونه مو خوشحاله لرى . په داسى حال کې چې زموږ او ستاسى نيتونه پاك او خالص دى د لوى خداى په فضل او مرسته کولاى شو چې پر غښتلو روافضو باندى برى وموموو . د پارس دولت د نا اهلانو په لاس کښې وتلى دي . له ډيرى مودې راهيسى د نږيدو خواته د رومى . زه چې په اصفهان کې وم په ټولو حالاتو يې خبروم . د دولت مشران پر دوو بيلو لارو روان وو په تدبير اوړرايوکى يو د بل په ضد کار کاوه . اويو د بل د پښتو خاورى ښکنيلى او هر فرديې د ځانى ښيګڼې په چارو بوخت و ټولو مشغولاً هميشه عيش او عشر شوه . دولت او ملت يې هير کړى و هيڅ سترګه ورسرى يې چې د هيواد او د نظام د اجتماعى ګټى له پاره يې څوله تبوروله واى نه درلود . نو د خداى تعالى له خوا هم بلا وى پرنازليدې چې خارجى ايلچى او سفير د شيروان او ازربايجان ارمنيان يې پاڅون ته وهڅول . چې په اخر کې ګرجستان هم د روس تر سلطى لاندى راغى ملى اقتدار يې د دښمنانو له هجومه ډير متزلزل شو موږ بايد د دغه موقع څخه د وطن د آزادى او ملى حکومت د جوړولو دپاره په زړه پورى استفاده وکړو او هرى ځانى او مالى قربانى ورکولو ته تيار شو . د دې عياش . ګمراه . دين او وطن دښمنانو ورکول د هر مسلمان افغان ايمانى او وجدانى وظيفه ده د دوى سره مجاهده او جګړه يو فى سبيل الله غزاده او خداى تعالى دى يې دټولو په نصيب کړي ...

ملي قايد ميرويس نيکه خپله وينا په
دې الفاظو پای ته ورسوله : هغه څه
چې دغيرت او شريعت مقتضاده هغه
چې تاسې وويله اوس که ستاسې په
منځ کې ځينې کسان بيا لاهم د
مريتوب ذلت د آزادي پر عزت غوره
ګڼي او د آزادي دا نعمت يې چې پاك
خدای په خپل فضل او لوروينې زموږ
په برخه کړی ده نه دی خوښ .د پردو او
ظالمانو غلامي او اطاعت يې د خپلو
اسلامي او افغانی ورونو تر متابعت
خوښو وي په خلاصه خوله دې ووايي .
هيڅوك به غرض نه په کوي . هو دومره
خبره ده چې داسې څوك دې نو نورله
موږ سره د هستوګنې هيله نه کوي او
زموږ د ازادي اسلامي افغاني خاوری
تر پولودی ها خواته واوړي "افغاني
مشرانو دده وينا په ډيره مينه او
دلګرمي واوريدله . څرنګه چې په دې
وينا کې افغاني احساسات د دين او
وطنو لی جذبات راپارول شوي و او چې
د علماؤ تائيد هم ورسره د افغانانو له
ده سره په ټينګه وعده وکړه چې په
ځاني او مالي قربانيو سره به د ده د
دغه ملي افغاني هوډ ننګه وی د خپلې
آزادي او ملي خپلواکۍ به مدافعه
کوي .

د دغې لويې جرګې وروسته دی د
افغانانو د ملي مشر او سترقايد په
څير اعلام شو . او د پاچاهي له نامه د
منلو څخه يې چې د مطلق العنايي بوی
ځنې راولاړيدی ډډه وکړه لکه چې د
وطن يو شاعر په "پل شعر کې د ده د
دغه عمل ستاينه داسې کوي :

نه خدمت نمودم که شاهی کنم
به تخت شهی کج کلاهی کنم
نه زيبد مرا شاهی وسروری
سرافرازم از افسر چاکری
مرا بس که قومم ګويد پدر
ندارم طمع ګوهر و سيم و زر
همين افسرم به که خدمت کنم
شما را چو فرزند خود پرورم
نه ديهيم شاهی بود در خورم
شما را همی کمتر که چاکرم

همدا شانې د افغانانو يو بل لوی
مشر چې د لوی جرګې په تصويب يې د
ملت او دولت چاري په خپل با کفايته
او درايت لاس کې اخيستې وی د
اسلامي او افغاني شعايرو لوی ممثل
او قومي لارښوونکی و چې د اسلامي
هيوادنو تاريخ او ملي کلتور يې په
افتخار د کارنمو يادونه کوي لکه چې
اروانباد مير غلام محمد غبار په خپل
اثر احمد شاه بابا کې د هغه د سيرت
او اخلاقو په هکله ليکي :

( او مردی بود نسبتا معتدالاخلاق .
پابند به اوامر و نواهی مذهبی و عرف
و عادات ملی و بانکه اقتداري
مسئوليت غالبابه خشونت منجر
ميکردد همذا احمدشاه طوری رفتار
نمود که بتوان او را در زمره پادشاها
عادل محسوب نمود . او به اولاد خود
وصيت ميکرد که د مجازات مقصرين
مثله رواندارند . مردمان را از تعظيم
بطور کورنش چنانچه دا بعضی ممالك
همسايه ما رواج داشت ممنوع دارند .
ادای سلام را برخلاف هيات خميدن و
خضوع به بالا کردن دستی نزديك سر (
مثل سلام دادن امروزه ما ) منحصر
ساخت و مجالس و باحثه را با علما
تاکيد نمود

احمد شاه آدم شجاع و لهذا به ضعفا
متواضع وبه مجرمين بخشنده به ظلمه
واقو يا دشمن قهار و بی ترس بود .
چنانچه خالی از تعصب دينی نبود .
تعصب ملی نيز داشت . در حاليکه در
داخله نزد ملت خود از مقربين الله و به
مثابه پدر مهربانی شمرده ميشد .
برای دشمنان خارجه و فرق عاصيه قوه
قهر کننده به حساب ميرفت .
احمدشاه آدم جوانمرد و حقوق شناسی
بوده مکافات هيچ محنت احسان را
فراموش نميکرد و اين صفت او را
ميتوان در رفتار او به مقابل حرم و
اولاد نادرشاه و رفقای همکار افغانی
او در معيت نادر تا اخير عمر او
ملاحظه کرد .

احمدشاه مثال ترس . تکبر و حرص و
امساك نبود . فياض و سخی بود
زندګانی شخصی او در کمال ساده ګی
د عادی از هر نوع تضنع و تجملی
بسرانيده ميتوان ګفت برای کاميابی
نقشه های مهم احمدشاه در افغانستان
همانقدر که فعاليت و قابليت او کمك
کرده است همانقدر هم فضايل اخلاقی
وصيت اين فضيلت او بين جامعه موثر
بوده است ... )

احمدشاه بابا ته وطن او وطنوال آزادی
او ملی کلتور تر هر څه زيات ګران و او
په خپلو اثارو کې به يې کله کله ستايه
لکه چې وايي :

ستا د عشق له وينو ډک سوه ځيګرونه
ستا په لاره کې بايلي ځلمي سرونه
که هر څومې د دنيا ملکونه ډير سي
زما به هير نه سي دا ستا ښکلي باغونه د
رقيب د ژوند متاع به تار په تار کړه
چې په توروپښتانه کاګذارنه
تا ته راسمه زړګی زما فارغ سي
بی له تا مې انديښنې د زړه مارونه
د دهلي تخت هيرومه چې راياد سي

زما د ښکلي پښتونخوا د غر سرونه
که تمامه ده دنیا یو خواته بل خوایي
زما خو خوښ دي دغه ستا تنګ ډګرونه
احمدشاه به دغه ستاقدر هېر نکا
که ونیسي د تمام جهان ملکونه

که څه هم په دغه زمانه کې د ملي قیادت او پاچاهي مقام په تثبیتولو کې جرګو ډېر اهمیت درلود . او له سیاسي نظره د بیلو قدرتونو او قومي نجابتونو او مسلط قوم او مذهبي امامت د منزلت درلودلو له کبله د هیواد ملي اتحاد او سیاسي ثبات په راوستلو او ساتلو کې تاریخي اهمیت درلود او د جرګې فیصلو قدرت د زیاتو حریفانو د وراثت څخه ساتی . خو اوس د زمانې تودو او سړو حالاتو د دغې مرحلې وجود پای ته رسولی د ملي قیادت او قوي مشرتابه د ټاکلو له پاره یې ونیکمرغی نوی ورونه پرمخ پرانیستي دي .

## د جرګې اوسنی حال او د هغې په مقابل کې زموږ د سیاسي او اجتماعي مشکلاتو حل :

تقریبا د یوې پیړۍ راهیسې د بیلو سیاسي او اجتماعي عواملو او خارجي نامطلوبو ښکاره او پټومداخلو له کبله ملي جرګو خپل پخوانی اصلي ماهیت او قومي وجاهت چې غړي یې د قوم په رضا او خوښه د دوی د منافعو ساتلو په اساس ټاکل کیدل بایللی دی چې د بایللو مهم عوامل یې په لاندی ډول څیړل کیږي .

لومړی ښاری موسساتو او عمومي مقرراتو چې د مدني احتیاجاتو د رفع کولو له پاره وضع کیږي د هغې موقف او فیصلې تر شعاع لاندې نیولی او د مدني او ښاری ژوندانه د پیچلو موضوعاتو د حل او فصل کولو څخه یې چې د اوسني ژوندانه د شرایطو او ایجاباتو څخه راپیدا شوی او د قبایلي او طائفوی سوچ او فکر څخه د باندي خاته علتونه او موجبې لري د هغو د پوهیدلو او درکولو څخه عاجز ګرزولی دي .

دوهم : دا چې تولني او جامعې انکشاف او رشد کړی د قبیلوی او طائفوی ژوندانه د ستم څخه معاشرتی او اجتماعي ټولنیز نظام مرحلې ته رارسیدلی او د هغې دانکشاف او ترقي له پاره نوی اجتماعي او اقتصادی موسسات په وجود راغلي چې په منطقي او حقوقي صورت د هغوی د فردي اواجتماعي ازادی ملکیت اقتصادی تشبساتو او بشری کراماتو خواب په ښه وجه تضمین کولای شي . چې د همدغو مزیتونو د په لاس راوړلو د پاره سیاسي او اقتصادی ډلې جوړې شوی چې هره یوه یې ځانته د انکشاف او ترقي بیلې بیلامي میدا او مقطع لري نو هر اجتماعي او سیاسي مشکل چې په دې مرحلې کې پیښیږي د داسې موسساتو پر فکری موازینو برابر د حل لاره ورته پیدا کیږي او د قبایلي محدودو منافعو ساتلو ته یې رانکښلولای .

زموږ په هیواد کې د نیمې پیړۍ راهیسې په سستماتیک ډول د مدني او ښاری ژوندانه د ضرورتونو د رفع کولو اجتماعي او سیاسي مسایلو د څیړلو او قبصله کولو د پاره تولنو شورا ګانو او ډلې جوړولو په نامه پټ او لوړ مجلسونه کیدل چې د لویدیځی د موکراسی د اساساتو د تطبیقولو د لاری یې غوښتنه د مظلومو هیوادوالو پر مخ د نیکمرغی او ترقي ورونه ویرانیږي .

خو د خواشینی ځای دا دي چې د دغو فعالیتونو په نتیجه کې د خلکو د اجتماعي او اقتصادی رشد د وروسته پاته کیدلو د تولنو د څینو مشرانو د ناپوهی او شخصي اغراضو په سر رسولو . د خارجي دښمنانو د ناوړو لاسونو د لاغځیدلو له کبله د دی پرته چی زموږ ملي خپلواکی . د خاوری تمامیت . ملي وحدت او خدای مه کړه د هیواد ټولنیز موجودیت او فرهنګی حالت په خطر کې څیني لویدلی دی بل څه په لاس نه څیني راغله د وطن او ولس د غلیمانو په دسیسو موتول طبیعي او اقتصادی منابع تباه . ښارونه مو وران پنځه ملیونه بی ګناه نفوس مو له وطنه مهاجر او اواره . یو نیم ملیون مو شهیدان . دوه ملیونه معیوب او درې ملیونه نفوس مو په دننه هیواد کې په فلاکت او نکیست د بې امنیتي . لوږی او نورو جنګی مشکلاتو له کبله یوې سیمې او بلې سیمې د کوچ او کډی کولو په مشکلاتو کې ګرفتار او د خدای تعالی د هیلی او مهرباني پرته د بقا او نجات بله توښه نه لري .

د وطن او قوم دښمنانو ـ هیواد پر نژادی . لساني . ایالتي متفرقو ډلو زرنو وویشه دا قوامو او قبایلو او ملیتونو د وزارتونو د جوړولو او قومي ملیشو په فعالولو سره یې د افغانستان

د تاریخی ملت یو والی "چې د ډیرو تاریخی زمانو راهیسې یې د وعتصمو به حبل الله جمیعا" په پاك شعار په یووالی او محبت د افغانستان ټولو قومونو په ارامی او امنیت ژوند کړی او پر ملی وحدت د هر ډول ډوږو جهان ورانونکو ازماینو څخه په بریالیتوب وتلی وو د زیاتوپیسو به بندلو او شیطانی دسیسو په جوړولو سره یې د دوی په منځ کې د نفاق او نفرت تخم پاشه. څرنګه چې د وطن یو پوځ تنکوال په خپلو یاداښتونو کې د داسې دسیسو د افشا کولو په ترځ کې لیکی: " من در جرګه وسیع ملیت هزاره به کابل اشتراك نموده بودم. دو نفر از برادرهای هزاره نزدیکم نشسته بود به انها گفتم حکومت برای مردم هزاره زیات توجه دارند خنده کرد گفت اینها میخواهند تا ما را به پشتونها به جنګ بیندازند به برادرهای پښتون خود جنګ نخواهم کرد.

درین اثنا عالمی از علمای هزاره به نفع حکومت بیانیه میداد. و یکی ازان دو نفر از دیگری پرسید این ملا کیه؟ ازمو خبر نیه به نفع حکومت کف میزند دیگری گفت خادیه مربوط دستګاه امنیت دولتی. کمی بعد یکی ازین دو نفر به میز خطابه خوانده شد. تا انچه داند بخوانند. بعد از ختم بیانیه به او گفتم خیلی مضمون عالی بود گفت نوشته از من نه بود خواندم. چرا که از پلچرخی ترسو بوده در همین جلسه بود که حکومت خود مختاری مردم هزاره تحت رهبری رفقای حزبی اعلان و خواهش نمودند تا بد خواهان این اصل ترقی را از سرزمین خود دور نمایند مقصد حکومت از برادران مجاهد بود به نفر دیگر گفتم مردم هزاره باید خوش باشد که صدراعظم از خودشان است او به من خیره شده گفت او هزاره نیه او کمونسته هزاره ها مسلمان "

د خارجی لاسونو او بحرانی اوضاعو له یوې خوا زموږ تنکېدلی ملت هر کله جوړولی او ټوانې کړی دي خو له بلې خوا ملی مشرانو او قومی اتلانو د پیدا کیدلو له پاره یې لاره هم هواره کړې ده چې په خپلو صادقانه رهبریو د تاریخی کارنامو مصدر ګرځیدلی دي شپاړسمی او اوولسمی او د اتلسمی پیړی پیل د افغانستان په تاریخ کې د همداسې بحرانی او فوق العاده حالاتو پیړی وی. په همدې پیړیو کې زموږ په هیواد کې د استبداد او استعمار تربرۍ خپرې وې. د افغانستان ملی خپلواکی او خارجی موجودیت سخته صدمه متوجه وه. زموږ پر ملی حاکمیت او د خاورې پر تمامیت د غلیمانو له خوا څخه تیری شوی و. افغانستان د کاونډیو پرجهتونو او حکمرانانو له خوا څخه د تجزیې او ورکیدو په خطر کې لویدلی و. د هیواد پرشمالی برخو د ماوراالنهرشیبانیانو پر ختیځو برخو د هند ګورګانیانو او پر لویدیځې برخې باندې د پارس د صفویانو د تسلطی طمع راخرخېدلی وه. خو ایماندارو وطندوستو افغانانو او د هغوی صادقو خدمتګارو مشرانو او ملی قهرمانانو د دوی تسلط ته موقع نه ورکوله او د خپلو ملی مجاهدو او وطندوستی په احساساتو د هغوی یرغلونه تر شا دځله

که څوك د افغانی مشرانو او ملی قهرمانانو د راپیدا کیدلو د علتونو پوهیدلو سره علاقمندی لری د لړی مطالعې وروسته به په دې ژر پوه شی چې هغوی په عمومی صورت د وطن او هیواد په داسې نازکو بحرانی حالاتو کې راپیدا شوی وو چې خدای مه کړه د وطن تاریخی موجودیت ننګ او ناموس په خطر کې ښېنی لویدلی او دوی په خپلو ایمانداریو او بی شانه خالصانه خدمتونو د خدای تعالی د رضا دپاره د وطن ته د نجات ورکولو په سبب ملاتړلی وه. او دا یې حسنه اعمالو مصدر ګرځیدلی وو" چې د افغان ملت د سیاسی او مذهبی چارو د فیصلې کولو صلاحیت هم ورسپارلی شوی و. څرنګه چې په لویو معرکو کې د عالمانو او ملایانو د جهاد په فتوا ورکولو سره ملت د هغوی تر شا دریدلی او د بریالیتوب مرحلې ته یې رسولی دی چې ښه مثالونه یې د ملا دین محمد ملا مشك عالم. ملا پوندہ او داسې نور مجاهدې یادولای شو

خو" دخواشینې خبره دا ده چې په راوروسته کې دغه جرګی د پاچاهانو زورمندانو او استعمار ګرو ګوداګیانو د ناوړو اعمالو د په سر رسولو ننګینی الی جوړی شوی په ملی او بین المللی صورت د ډیرو اشتباکانو او خطاکانو مرتکب ګرځیدلی چې د هغو څخه د کال ۱۳۱۱ هـ ق ( ۱۸۹۳ ع) او ( ۱۳۶۴ هـ ش ) جرګو ناوړه تصویبونه او زړه دردونکی او شرمونکی خاطری د افغانستان د دین دوست او وفا شعار ملت د زړونو څخه بالکل هیریدای نه شي. د دغو اشتباه کانو سره بیا هم باید دا د یادونه یوسو چې لویه جرګه د افغانانو د ملی حاکمیت ملی رهبری او حقوقو د ساتیرو د توجیعه کولو

یوازنی مهمه منبع ده هیلـه ده چـې دا یوه غیر ملي او افغاني کلمه ونه ګڼله سـی او د ځینـو افغـان دښمنـو تنـګ نظـرو او معتصبو پـه څیـرو زمـوږ د قومي او ملي قـاموس څخه ونـه شـړل سي

## د افغانستان د پیچلي سیاسي مسئلې د حل یو اساسي صورت :

لکه چې په عمل کې دا پـه ثبوت رسیدلې ده چې د افغانستان د روانې ویرجنې سیاسي پیښې اساسي پیچلې علت د ځینو ګاونډیو او لیرې او نژدو ابر قدرتونو متضادې بې لرونکې او د هغو د ملـي ګټـو پـر بنسـټ ولاړې مداخلې دي چې افغانان نه پریږدي د یو اسلامي ، متحد او قوي نظام د جوړولو او ملي مشروعو حقوقو د پـه لاس راوړلـو هلوځلوکـې بریـالیتوب وموميٰ او د هر چـا مخصوصـو ازادې مشربو وطندوسـتو افغانـانو او بیـن المللـي واقعـي عدالـت خوښوونکـو منابعو ته دا ځرګنده شوې تر هغو چې په افغانستان کې د ملي شعایرو سره سم یو مرکزي اسلامي افغاني متحد دولت پـه وجود نـه وي راغلـی خـارجي مداخلـو او توطعـو تـه لکـه د فدرالـی دولت او ائتلافي حکومت جوړولـو ، د مخدراتو دنه بندیدلو . دښځو حقوقو ته دنه اعتنا کولـو او پـه اخیر کې د اسـامه بـن لادن د نـه تسـلیمولو او اقتصـادي بندیزونـو اینبودلـو او د افغانسـتان د دیـن او نظـام دښمنـان تحریکولو او تجهیزولو او داسې نورو توطئـو تـه د پـای ټکی نـه وي ایـښودل شـوي پـه داسـي بـهانو بـه خـارجي

مداخلې همدا شانې جاري وي د حق او واقعیت پـر بنا د مسئلې حل او فصل ته به د ډیپلوماتیکو او مسالمت امیزې لارو په مقابل کې به خندونه ایجادیږي داخلي او د سیمې امینت ته به کواښ جوړوي

علامه اقبال نیمه پیړی د مخه پـه خپـل یـو شـعر کـې د افغـانـانو د امنیـت او صلح ورانولو خطر ته داسې اشاره کوي علامه اقبال چې نیمه پیړی دمخه په خپل شعر کې دافغانـانو د امنیت او صلح ورانولو خطر ته داسې اشاره کوي لکه چې وايي:

اسیا یك پیکر اب و ګل است
ملت افغان دران پیکردل است
ازکشاد او کشاد اسیا
از فساد او فساد اسیا

د علامـه اقبـال پـه قـول د اسـیا زړه افغانستان څخه راپورته شوی فساد د ټولـې دنیـا فسـاد ګڼل کیـږي . دغـه فساد او شر به نه یوازې په ګاونډیو هیوادونو پورې محدود پاتـه شي بلکه اور به یې او دنړۍ مخصوص د توطئـه ګرد سیمې په لمبو کې مکوټ کړي او بین المللي نا ارامیو موجب به وګرزي

که د افغانســـتان جغرافیــــاوي او دموګرافي موقعیـت چـې قومونـه یـې ګډوډ پراته دي او د هنـد د روابطـو او مناسباتو قانمولو له پاره د اسلامي او افغاني نظام مصالح او ښیګڼې په نظر کې ونـه نیولـی سـی او د لویدیـځې دموکراسـی تشـریفاتي د عدالــت معیارونه چې محضې د رایو د اکثریت پر کمیت بنادي او په هغه کې د تقوا او د ملتونو د عقیـدو او کلتورونـو پـروا ونه ساتله سی علامـه اقبـال د داسـې

سیستم د تطبیق په هکله تشویش ښکار کوي او وايي :

متاع معنی بیګانه از دون فطرتان جویی
زمورا شوخی طبع سلیماني نمی اید
ګریز ازطرز جمهوری‌غلام پخته کاری‌شو
که از مغز دوصد خر فکر انسانی نمی اید

د ملګرو ملتـو دا اسـاسـی وظیفـه ده بیله هغې څخه چې فیصلې یې د ځینو استعماري هیوادونو د فشار او د دوی د ناوړو شخصي ګټو تـر تـاثیر لانـدې راشـي بـاید جـهاني مـهمو مسـایلو مخصوص د افغانستان د خلکو د ملي او بیـن المللـي حقوقـو د تـامینولو پـه موضوع کې د بین المللي مناشر د حق ، عدالـت او واقعیـت . دبنیـادونو د احترام له مخې فیصلـه وکړي او پـه یـو طرفانـه قضـاوت دافغانسـتان نـاوړه جنګ ته دپراخیدلو زمینـه مسـاعده نـه کړي . د یو ازاد . صلح دوست ملت پر بشري حقوقو چې په ملګرو ملتو کې یې د شمول ټول مهم شرایط لکه دننه په هیواد کې د امنیت په راوستلو . د هیواد پر لوی برخې باندې د تسلطې لرلو . د ملګرو ملتو د منشـور منلو او د اسلامي نظام په څوا او د ګنو علماو د فیصلې له مخې د اسلامي امارت د تاسیسولو او د اسلامي نظام د احکامو له مخې خپلو اتباعو تـه د بیلـو حقوقـو ورکولو او دا سې نور شرایط برابر کړي دي سترګې پټـې نـه کـړي او خپـل موجودیـت نـه د یـوازې بیـن المللـې عدالـت سـاتونکي موسسـې پـه څېر د وقار او احترام نوري زمینې مساعدې کړي

لکه څنګه چې ځینې مفسرین وايي :
ایا واقعا ملګري ملتونه د افغانستان په کشاله کې ناکام شوي دي ؟

که ناکام شوی دي ایا د ملګرو ملتو څخه پرته بلـه نړیوالـه یـا سیمه ایزه موسسه سته چې هغه دی د افغانستان د مسئلې په حل کې (کامیابی) هڅی وکړای شی ؟ په واقعیت کې ملګری ملتونـه ناکـام شـوی دي او نـه خـو د ملګرو ملتونو غیر بله داسی بیطرفه او مسئوله موسسه سته . هغه څوك چې خپله ملګری ملتونه او د سولی له پاره د ملـګرو ملتونـو د نمـاینده ګانـو د مـاموریت پـه مـاهیت او صلاحیـت پوهیـږی د هغـوی لـه پاره د ناکامـی تکی منل به څه ګرانه خبره وی . البته د ناکامی په ځان به د اتکی ومنی چې د افغانسـتان پـه کشـاله کې ملـګری ملتونه له ډیرو پیچلو مشکلاتو سره مخامخ دی او دغه مشکلات د یو قوی اسـلامی مرکزی حکومت د جوړیـدو د مخنیـوی لـه پـاره پـه خپلـه بـاندینو مداخلـه ګر راپیـدا کـړی او د ملـګرو ملتو موسسه یـې بـاید د هـر اړخـیزو مشکلاتو د رفـع کولو پـه صلاحیـت د واقعیـت او عدالـت لـه مخـی حـل او فصل کړی

افغانـان د یو شتمی پیړی په روښانو خصوصیاتو پوره باور لری او د خپـل هیـواد پـه جغرافیـا وی موقعیـت او د مختلفـو وړونـو قومونـو د وجـود پـه اهمیت پوره اګاه دي چې د دوي هیـواد د دغـو مـهمو فکتورونـو لـه املـه د ګاونډیو او سیمو هیوادونو تر منځ د اتصال او همکـارۍ ډیر مهم او د ټولـو پـه ګټه ګټور رول لوبولای شـي او پـه ربنتینه توګه غواړی چې د خپل هیواد ټول سیاسی سـرحدو تـه د ګاونـډیو او دسیمی د ټولو هیوادونـو سره د سولی او همکاری په سرحدونو بدل کړی .

افغانـانو پـه تـاریخی سـړو او تـودو بحرانانو کې ځان د ازاد او ملـی خـود ارادیت درلودلو او باشهامته ملـت او مرکـزی دولـت درلودلـو او د قومـی باشعایره ملت په ځیر هـر کله په ثبوت رسولی او هیڅ استعماری او طـاقتور قـوت پـه دي بریالی شـوی نـه دی چـې هغه دی د تل دپاره تر خپلی سلطی او استعمار لاندی وساتی افغـان یـو اسلامی ملت دی چې په هغه کې داسې نـژادی ، لسـانی ، قومـی او ایـالتی توپیرونه چې د نړی په ځینو هیوادونو کـې یـې د ملیتونـو او یـا ائتلافـی حکومتونـو مسئله او سیاسـی لانجـه راپـاڅولی ده دلتـه یـې اثرونښانـه پـه واضح ډول نه شي لیدل کیـدلای دوی د خپـل ملی او اسـلامی نظـام لانـدی پـه ورورۍ او برابـری د ملـی او قومـی مناشیرو سره سم خپـل ژوندانـه تـه پـه افتخـار امیـزه ډول دوام ورکـوی او کـه احیانا په دغـه ملت کې بیـل قومونـه ، ژبی ، نژادونـه او ژوندانـه بیلـی شـوی وجودی دوی بیـا هم پـه اجتمـاعی او تـهذیبی عدالـت یـو لـه بلـه سـره نـه بیلیدونکی وړونه دي او ښه یې هغـه دی چې خدای ته نژدی او تقوا لرونکـی وی لکه چې فرمایي : وجعلناکم شعوبا وقبایل لتعارفوا . ان اکرمکم عند الله اتقیکم

اوس چې ځینی ناعاقبت اندیشـان او د ملـی وحدت دښمنان زمـوږ پـه هیـواد کـې د فدرالـی دولـت یـا ائتلافـی حکومت د جوړولـو لـه پـاره د خـارجی غلیمـانو پـه تحریـک د ائتلافـی او فدرالی حکومت د جوړونو ناری سوری وهی دا د افغانستان د ملی وحـدت ، ملی کلتور او سیاسی ادائیی د سالم جریان څخه یو مخالف او غیر عملی سوال دي . په فدرالزم کې د یـو هیـواد اسـاس پـه بیلـو سیاسـی ، اقتصـادی ، فرهنګی او اداری صلاحیتونو او خانته تشکیلاتو درلودلو ایښودل سوی دي او پـه یـوه حکومـت کـې څو نـور حکومتونه موجود شوی دي چې هر یو یې ځانته حقوقی او تشریفاتی حیثیت لری

زموږ په هیواد کې د داسی حکومتونو د په وجود راتلو نه ضرورت شته او نـه ملـی مصلحت دغـه ډول حکومت نـه زموږ د جـامعې د اکـثریت ارمـانو او تاریخی واقعیتونـو سره سر خوری او نـه مـو د ملـی اتحـاد او قـوی مرکـزی حکومت د جوړولو د هلوځلو سره

فدرالزم د مرکزی حکومـت د قـدرت او تامه صلاحیت لرلـو سره مخالف دي . او داسـی حکومـت دې نـه اړدی چـې دخپـل قـدرت مهمـه او زیاتـه برخـه پـر ایالتی سکتورونو وویشی څو د ګټو او مـهمو سیاسـی او اقتصـادی مرکـزی تصمیمونه څخه محروم کړه شی او تـل د لږکیو د ډول ، ډول نژادی ، لسانی ، ایالتی تـوپیرونو چـې د ځینـو افغـان دښمنه منابعو له خوا څخه حمایه کیږی قربان شی او افغـانی مرکـزی دولـت د تـش پـه نامـه کمـزوره محتـاج او بـی صلاحیته دولت په څیر د پرمختګ او ترقی د لوړی څخه راوګرزوی څو د هـر داخلـی بحـران او خـارجی ټولنـی پـه مقابل کې د ثبات او یا برابـری تـوان ځینی سلب شی او د زمـانې پـه مـرور تجزیه شي ○

لمړۍ برخه

# الاحکام السلطانیه

ژباړه: مفتي لطف الله حکیمي

الحمدلله رب العلمین ، وصلی الله
علی سیدنا محمد خاتم النبیین
و علی اله و صحبه اجمعین وسلم
تسلیما کثیرا امام قاضی ابویعلی
محمد بن الحسین بن محمد بن
خلف بن الفرآ رضی الله عنه
وبلی دی : الحمدلله حق حمده
والصلاة علی نبیه محمد او اله و
صحبه وسلم

اما بعد : ما د "الامت" په نوم یو
کتاب تصنیف کړی وو . او دغه
کتاب مې د معتمدو کتابونو په
لړلیک کې شمیرلی وو . او په هغه
کې مې د متکلمینو مذهبونه او
دهغوی د لائل . او زموږ دلائل او د
هغوی لخوا چې څه ویل شوي وو .
د هغوی جوابونه ذکر کړي و .

او بیا مې لازمه وګڼله چې د امام په
اړه یو کتاب بل مستقل ولیکم . او
هغه څه دلائل او خلاف چې مې په
هماغه کې لیکلی و له دې نه لرې
کړم او په دې کې نور فصلونه زیات
کړم چې امام ته په ولایاتو کې د هغه
کول روا وي . له کریم خدای "ج" نه
پر دې باندې مرسته غواړم . او که د
هغه خدای "ج" خوښه وي دا کتاب
دې ګټور ثابت کړي .

فصلونه په بیان د امام کې

د امام ټاکل واجب دی . او امام
احمد "رض" فرمایلي دي په هغه
روایت کې چې ورنه محمد بن عوف
بن سفیان الحمصي کړی دی .
الفتنه اذا لم یکن امام یقوم بامر
الناس . فتنه هغه وخت رامنځته
کیږي چې امام موجود نه وي چې د
خلګو چارې ورسمې کړي او د دې
وجه دا ده کله چې په سقیفه کې د
صحابه کرامو په منځ کې اختلاف
راغلی . نو انصارو وویل یو امیر
دې زموږ له منځ نه او بل دې
ستاسو له منځ نه وټاکل شي . او
صدیق اکبر او فاروق اعظم رضی
الله عنهما د دوی سوله وروکړه .
ژوئي ویل : ان العرب لاتدین
الالهذا الحي من قریش . ژباړه : په
تحقیق چې عرب د قریشو له دې
کلي نه پرته د بل چا اطاعت نه
کوي .

او په دې هکله یې دحدیثونه د
شواهدو په توګه را روایت کړل . نو
که چیرته امامت واجب نه وای نو به
ورباندې دغه محاوره او او مناظره
کول چیرته روا شوي وای .

او هرومرو به چاویلای چې نه په
قریشو او نه په بل چا کې واجب دی
او د واجب والي طریقه یې سمه ده
عقل نه دی له دې چې له دې ځایه
سیوا په بل ځای کې موږ ذکر کړي
دي . او بل دا چې په عقل سره د یو
شي واجب والی او اباحت نه
معلومیږي او نه هم د یو شي حلال
والی او حرام والی په عقل سره
معلومیږي . او امامت فرض کفایي
دی . چې له خلګو نه دوې ډلې په
هغه سره مخاطبې دي . یوه ډله اهل
الاجتهاد . ده چې یو څوک غوره
کړي . او دوهمه ډله هغه څوک دي
چې پکښې د امامت شرائط موجود
وي . څو چې له دوی نه یو د امامت
لپاره ونومول شي .

هر څه چې اهل الاختیار دي . نو په
دوی کې درې شرطونه معتبریږي
یو عدالت . دوهم هومره علم او
پوهه چې د هغې په وجه د امامت د
مستحق پیژندنه وکړي . او دریم
شرط دا دی چې دداسې رایې او
تدبیر درلودونکی وي چې د هغو
په مرسته هغه څوک چې د امامت
ته ور وي غوره کړي . او داسې نه
ده چې په یوه کلي کې اوسیږي هغه
نو پر نورو کلیو والاو باندې غوره
والی لري . چې د دوی حق لومړی
کړای شي . بلکه هغه څوک چې د
امام په کلي کې اوسیږي د امامت د
غوټه کولو لپاره متولي او خاص
دي چې دی د امام په مړینه له
نورونه وړاندې خبریږي . او بل دا
چې څوک چې د امامت صلاحیت
لري هغه غالبا له مخکنی امام په ښار
یې کلي کې اوسیږي . او څوک چې

امام جوړیږي . څلور شرطونه به لري . یو دا چې اصل او خالص قریشي به وي . دغه هغه دي چې د قریش ابن بدر بن " النصر چې د بني کنانه (۱) مشر او او مرشد دي " له اولاده څخه به وي . او امام احمد رحمت الله علیه په یوه روایت کې چې ورنه رانقل شوی ویلی دي چې . لایکون من غیر قریش خلیفه له قریشو نه پرته له بل چا نه خلیفه څوك نه شي کیدای . دوهم شرط دا دي چې پر داسي صفت باندي وي چې د دې صلاحیت ولري چې قاضي شي . چې هغه تو حریت دی . چې ازاد به وي مریي به نه وي . او بلوغ دي وي چې کوچنی به نه وي . اوعابد وي بی عقل او لیونی به نه وي . پرسد به وي . او عالم به وي . چې جاهل او ناخبره به نه وي . او عدالت دی . چې ظالم به نه وي او دریم شرط دا دی . چې دحرب او سیاست او د حدودو د اقامې چارې به سمولای شي او په دې برخه کې به زړسوی نه لري . او دفاع به له امت او خپل قوم نه شي کولای . او د خپل اسلامي امت حمایت به کوی . او څلورم شرط یې دا دی . چې له خلگو نه به په علم او دین غوره وی . او له امام احمد " رح " نه داسي توری رانقل شوی دي چې د عدالت او علم او فضل د اعتبار معتبرولو " شرط گڼلو " اسقاط راولی .
ده ویلی دی . په هغه روایت کې چې عبدوس بن مالك القطان کړی دی . ومن غلبهم بالسیف حتی صار خلیفه وسمی امیرالمومنین لایحل لاحد یومن بالله والیوم الاخر ان یبیت ولایراه اماما علیه . براکان او فاجرا فهو امیرالمومنین . ژباړه . او هغه څوك چې د توری په زور سره غلبه ومومي او خلیفه شي او په امیرالمومنین سره ونومول شي نو هغه چاته چې پر خدای پاك جل جلاله او پر قیامت باندی ایمان لري نه دی روا چې یوه شپه پیروی او دغه امیر د خپل ځان امام او پاچا نه بولي . دغه امام او پاچا نیك سړی وی که بد سړی وی نو دی امیرالمومنین دی .
او همدا شانې د مروزی په روایت له امام احمد رحمت الله علیه نه داسي رانقل شوی دی . که چیرته امیر داسي کس و چې د مستوونکي ځیزونو په څښلو او په بیت المال کې په خیانت کولو سره پیژندل شوی وو . دا د ده خپل کار او خپل تاوان دی . خو له دښمن سره په غزا او مقابله کې له ده سره ملګری کیدل ضروری دی . او په " المحسنه " کتاب کې له امام احمد رحمت الله علیه نه روایت شوی دی چې ده په ډیرو ځایونو کې " معتصم " په امیرالمومنین سره یاد کړی دی . او له دې سره سره چې معتصم امام احمد رحمت الله علیه دی راوباله چې . په خلق القران . سره قول وکړي او پدې باندی یې امام احمد صاحب . وواهه . او هم دا ډول امام احمد رحمت الله علیه " متوکل " امیرالمومنین باله . او متوکل نه اهل علم وو . او نه هم د خپل وخت افضل . بهتر او ښه وو . او له امام احمد رحمت الله علیه نه داسي څه هم روایت شوی دی چې له دې سره سمون نه خوری . نو د حنبل په روایت سره له ده نه رانقل دی چې وایي وایی بلا کان اکبر من الذی کان احدث عدوالله وعدو الاسلام من اماتته السنه . ژباړه . او له دې نه به بله لویه بلا څه وی چې د خدای " ج " او د اسلام دښمن پیښه کړي . چې سنت یې مړه کړی وو . یانی هغه څه چې له متوکل نه وړاندی پیښ شوی وو . نو متوکل بیرته سنت راژوندی کړل . زما د ورور د کتابونو پر یوه ټوك باندی لیکل شوی و حنبل وایی دا ډول وو . ما ولیدل " حدثنا ابو الفتح بن منسیع . قال سمعت جدی یقول : کان احمد اذا ذکر المامون قال : کان لامامون " ابوالفتح بن منسیع وایی چې ماله خپل نیکه نه واوریدل چې ویل یې چې د امام احمد رحمت الله علیه په حضور کې چې به کله د خلیفه مامون یادونه وشوه . ده به ویل مامون . مامون نه وو . یانی لکه نوم چې یې دی داغسی مامون نه وو . اود " الاثرم " روایت دی چې وایي له امام احمد رحمت الله علیه نه پوښتنه وشوه چې هغه ښځه چې ولی یعنی " ذی رحم محرم نه لري " څوك یې ولی

دی . ده وفرمایل "السلطان" پاچایی ولی دی . نو ورنه وپوښتل شوی چې ته وایی په چایي ولی دی . او موږ چې تا وینو نن بل ډول وایی . او دا هغه وخت وو چې ورکی قاضیان امتحان کیدل او تکلیف ورکیدو . ده په جواب کې وویل ما داسی نه دی ویلی کوم چې یې نن وینو . ما ویلی چې پاچا "یانی سم پاچا وی هغه ولی دی .

او دا خبری پاچایانو ته د ذم او بدویلو غوندی دی . دا داسی خوښی ویل نه دی . مګر داسی د دوی په پاچاهیو کې بدی ګڼانې وې . او د عبدوس روایت چې کوم دی هغه کیدای شي چې پر دې باندی محمول شي . چې که همالته داسی عارض موجود وو چې د عادل عالم فاضل . پاچا له ټاکلو نه یې منع راوستله . هغه په دې ډول چې د خلکو زړونه په کراز وو . او د ده پر مخ سره راټول یو موټی و . او له ده نه په مخ اړولو ، بغاوت کولو کې ، مشقت زیاتیدو او حالات خرابیدو . که چیرته د امام د ټاکلو په وخت کې دغه صفتونه ورکی موجود وو . بیا له عقد وروسته ورکی نیستی شوو . نو ته وګوره که چیری د ده په عدالت کې جرحه وه . چې هغه فسق دی . فسق یې پیل کړ . نو دا فسق د امامت دوام نه منع کوی . دا فسق که د جوارحو "اندامونو" افعال وی . لکه دا چې د محظوراتو "منهیاتو" مرتکب شي . او بدو کارونو ته د خپل شهوت د پیروی او اتباع له امله . لاس ور واچوی او که دغه فسق د عقایدو "د نظریې" وی . او دا خبره متاوله ده نه ده معتبره . ځکه چې دا شبه پکښی شته چې کیدای شي په داسی بدو سرشي چې له حق نه خلاف کارونه وکړی .

او دا د امام احمد صاحب رحمت الله علیه د کلام چې مروزی ورنه روایت کړی و . چې امیر که مستوونکی شیان څښی یا له بیت المال او غنیمت سره خیانت کوی . په غزا کولو کې دی مرسته ورسره وکړل شي . او ده "معتصم" امیرالمومنین باله . او حال دا چې هغه دی دې ته رابللی وه . چې په خلق القران سره قول وکړی . نو دا یې د کلام ظاهر شو .

او حنبل ویلی دی چې : د بغداد فقها د شیخ ابو عبدالله په وړاندی سره راټول شول او د "الوائل" له ولایت نه یې ورته شکایت وکړ . او ویې ویل چې د . خلق القران توری چې ویل کیږی . دا بیخی وپاشل شو . عام شو . موږ له تا سره مشوره کوو . چې د ده په امر او پاچایی باندی موږ نه یو خوښ . نو ابو عبدالله ورته وفرمایل . "علیکم بالنکره بقلوبکم ." پرتاسو دا لازمه ده چې په زړونو کې دا کار بد وګڼی . ولاتخلعوا یدا من طاعه له اطاعت نه بې لاس مه کاږی . و لاتشقوا عصی المسلمین . د مسلمانانو یو والی مه ورماتوی . او د مروزی په روایت کې راغلی دی . او د حسن بن صالح یې یادونه وکړه او ویې ویل . کان یری السیف . ولا یرضی بمذهبه . چې د ده توره چلول خوښ وو . خو د پاچا په مذهب کیدل یې نه و خوښ .

او که چیرته د پاچا پر بدن باندی عیبونه نوی راوټو کیدل نوموړ ګورو . که چیری د عقل زوال وو . بیا به وګوری که چیری عارضی وو . جوړیدل یې ناشونی نه وو . لکه بی هوښی بی سده کیدل "نو دا نه د امامت عقد منع کوی او نه هم دوام ورکول پر امامت او پاچایې باندی پاته کیدل منع کوی . ځکه دا ناروغی لږ وخت پاته کیږی بیرته لری کیږی . او بل دا چې پر رسول الله صلی الله علیه وسلم باندی په ناروغی کې بی سری راغلی ده . او که چیری دا نا روغی لازمی وه د لری کیدو هیله یې نه کیده لکه لیونتوب او فلج کیدل . نو بیا موږ ګورو که چیرته ورسرمل وه او پرسد باندی و .

۱- هم دا ډول په اصل کې راغلی دی . او د ابن هشام په سیرت کې وایی . نضر بن کنانه قریش دی . نو څوک چې د ده له اولاده وی نو هغه قریشی دی . او څوک چې نه وی هغه قریشی نه دی . د نسب سلسله دا ډول ده . النضر بن کنانه بن خزیمه بن مدرکه بن الیاس ابن مضر بن نزار بن معد بن عدنان .

نو ...



## د سره غره پرگنی

سعدالله
سعید

سپځلی غوندی پیرشه مریدان په ځان راټول کړه
د مینی بل مشال شه پتنگان په ځان راټول کړه
شمیمه فضاء جوړه کړه وږمه وږمه گلاب شه
د مینی په نڅا کې بوراگان په ځان راټول کړه
یو ونه شه سمسوره د گودر په مسته غاړه
د ځانگو په سرونو مست مارغان په ځان راټول کړه
دا دنیا خو د مینی هم ساقی شه هم جانان
طبیب شه د رنځونو رنځوران په ځان راټول کړه
له گروه دباروتو ځنی ځند وهه پا مبره
د سولی او دامن طالبان په ځان راټول کړه
د ژوند پر وچه دښته لار وی دی جل وهلی
د علم سمندر شه تشنگان په ځان راټول کړه
شمشاد په هسکه غاړه بیا اټك ته داسی وایي
تپه تپه میوند شه ستر غازیان په ځان راټول کړه
د سره غره پرگنی د ( ملکیار ) سندری غواړی
( سعیده ) "مینه پال" غوندی یاران په ځان راټول کړه

## څلورېځه

محب الرحمن رحمانیار

چې د اوښکو سمندر ته لار پیدا کړم
پکار نلرم نور څه چې یې ادا کړم
بس همدا هنر مې بس راته په ژوند دی
چې یو څو توری یو ځای جوړه ښکلا کړم

## انکار

محمدیار

نن بن ته د انگورو له نکار سره راوزم
ترتاك لاندي غځیږم له خمار سره راوزم
نیښونه به د ټندو ټول له زهرو څخه تش کړم
بېباك غوندي راوزم له پیکار راسره راوزم
ساره . ساره یاران به یې له تاوه گرمومه
باندار ته د غزلو له انکار سره راوزم
مستی مې ده له غیرو د زلمیو ښویېدلی
د مستو مستو هیلو له اشرار سره راوزم
که خیر مي څوك په کار لري . نوشر هم راسره دی
ومخته به یې گل غوندې له خار سره راوزم
راغوند به په نارو د (یه قربان ) شوخ څنوږ کړم
اتڼ ته به تښه له " یکه زار " سره راوزم
یو داسې سرکښې او بغاوت مې دی په نیت کې
وهر امرو فرمان ته له انکار سره راوزم




ملاعمرشاه
" حیدری"

په اخلاص ترلاسه کیږی د ایمان زړه
په خوږه لهجه نرمیږی د انسان زړه
که کتل که خپلول دي په نرمی دی
په کیلو کیلو رحمیږی د جانان زړه
هر سړی په خپل عمل تر مراده رسی
کنه هیڅ نه په خوږیږی د اسمان زړه
هر سړی شر تکوی له خپله بخته
سړی وه سوځی پربل چا پر ځان زړه
د کعبې تر طواف دلته ستر ثواب ده
چه پیوند کړی څوك مات شوی لالهان زړه
وای زړه د مؤمن عرش که جاودان کړ
ډیر افسوز ده چې داغی کړی څوك ودان زړه
حیدری له زړه نه زړه ته سپینه لار ده
هسی نه چه څوك معلوم کړی په گمان زړه

# خوب

احمدالله وثيق

په مونږ به هم کوترې بختورې راشي راشي
د وخت ځينې خفه به مرورې راشي راشي
بيګاه مې خوب ليدلو قافلې وې د خوښيو
زمونږ د کلي خواته برابرې راشي راشي
ليلا د آزادۍ غوارې ولور د تن د وينو
نن بيا به د زلميو سرې ککرې راشي راشي
چې کله د قاتلو په ښکلا د ښار جګړه شي
له ښاره نازولې سر ببرې راشي راشي
له ځان ځينې پردې شمه جهان ځينې پردې شم
چې خولې ته مې د مينې ښې خبرې راشي راشي



# سندريز تخت

نوراجان " بهير "

تا له به ګران وي د نڅا او د جامونو پاچا
زما په زړه کې خو اوسيږي تل د زړونو پاچا
نن مې په سترګو کې تصوير د يارو بڼ ته وړي
هر ګل سلام کړ وې چې راغی د ګلونو پاچا
له اسويلو يې د شپيلۍ تور ستوني او راخستي
بيا د تپو پر اوږو سپور ښکارې د غرونو پاچا
سندرير تخت يې د ښکلا د ښار په زړه کې ايښي
تاج په سر ناست ښکې "کاروان" ها د لفظونو پاچا

# غزل

محمد قاسم عارف

ډير نازل دی لکه ګل رانه ماتيږي
بيا به خيال کې يو غزل رانه ماتيږي
ما وې زړه مې د شيشې غوندی نازل دي
وې يې داسې زړونه تل رانه ماتيږي
زه چې توری ستا د نوم سره راټول کړم
يو چې اخلمه نوسل رانه ماتيږي
دا رښتيا ده يم رښتيا بلا وهلی
چې ښنګري دی په هر ځل رانه ماتيږي
دا پاچا غزل اشنا ! د ماشوم زړه دی
ورته وايمه بسمل رانه ماتيږي
په اوږدو ، دا د وختونو زلزله ده
د رنګونو شيش محل رانه ماتيږي
که ياغي زړه دی قابونه کړو " قاسمه "
زه که هر څو وکړم چل رانه ماتيږي

# ښکلا ښکلا خيالونه

پروين " ملال "

بيا د بام تر څوکو خاڅي ستا ښکلا ښکلا خيالونه
لړ يې غيږ کړ کې ته ورکړه خلاص يې دوازه وزړونه
ستا د غم سره نکاح مې د ازل پاچا لوستلې
راته ګوره ملکه ې را سره دی لښکرونه
د ښنو په تنکی ملاوو د لبمو په لطيف جسم
ځنګه کړمه بارانونه . ځنګه وړمه ډک سبندونه
خو زما د زلفو ول شي چې د ساه عطر دی راشي
د سبا باده خوامه چې پريشان راوړی مزلونه
د فراق خلو تکره کې ترسحر شپه رونول دي
زما په تور وخنو کنبيږ ده ډک د ستور وسپين لاسونه

عبدالغني فقير

چه په دوښی ځان ته خوش کړي يو سم
يوه وايه بل د سخت دي هغه دم
بود حمونه ښې ثانې ته سوه وريانه
نر ماين يې دي ثالث پرقمر حم
دوی مرې وارد په غمو سره اخته سوه
کليکار په حجابو دي سو سهم
په فقير يې په غمو دي سو مرې خايه
ډل ترګي دويم زړد قند دي درېم

# غزل

عبدالمجید عارف

شرنګ د زولنو به یې سندره کړم
نېر به یې په یاد ورته له سره کړم
مینې ته زندې اچوي دا خلک
ټوله زمانه به پرې خبره کړم
وربه ورته زېړه غوټۍ بیا کړمه
ژبه د قلم به یې کوډګره کړم
سرمې دې په دار شي لیونې لمانځم
لار به لیونو ته برابره کړم
ستا "عارف" ګلابه خلک نه پرېږدي
کاشکې چې یې خلاص د دوی له شره کړم




هر سهار به دلمر وړانګې
زموږ د کلي زرین شال وې
ما به خپل کتاب راواخست
د جومات په لوري ورو، ورو
چې راتلمه غوږزیدمه پرزیدمه
د الف او بې سبق و
په تنکۍ ژبه مې لوستی
په تنکۍ ژبه مې لوستی
بیا چې لږ غوندې زلمی شوم
د کمکۍ ژبې طالب وم
په یو خړه حجره کې
چې د سرو لښکرو شور و
زموږ په کلو او ښارو کې
ما به دا وې لویه خدایه!
زه به هم یو مجاهد یم
زما ملي غرور بد نام شو
جهاد ته بری مجرم شو
نو مې وغوښتل چې پاڅم
د ها سرې توري له شرنګه
د شهید بابا له یاده
ورته یاد کړم تاریخونه
د پردیو ګوډاګی ته
هوا ربښتیا به درته وایم
چه زه ورك شوم او تپې شوم
چه زخمي شوم او بندي شوم
اوس په خوب کې د خپل کلي
لوی واړه وینم چه وایي:
ولې نه راځې وګوره ته؟
د همدې دروازې شاته
یو خر وري سپي دي غاپي
ما به وخوری چه در ووزم
که راغلی زما ملګرې
ای اتله ای باتوره!!
بیا به ګډ خو مخ په وړاندې
ساقیاره! ورته وایه
دعا غواړم
دعا غواړم






# غزل

خوله مې شنه ماته که مې بیا وویل
ما په خطا درته آشنا وویل
زړګیه! نوره دي منلې نه شمه
بس دومره ډېره وه چه تا وویل
خبره لږه وه خو ډېره شوله
چا درواغجنو په ربښتیا وویل
پښتنې سترګې پورته نه شوي ګله
ورته که هر څومره دمې د غلا وویل
د زړه طوفانه راپسې هر څه نه شي
چاپیره وریځې دي بریښنا وویل
صبر د مینې په کتاب کې نشته
ناپوهه څه دې راته دا وویل
نن ترې "وحدت" دې بېنوا راغلی
چا په ژړا چا په خندا وویل

# د زړګي هیله

ملا محمد صادق حماد

یا مې پوهه په نصیب کړې لوی څښتنه
یا د ژوند تغر مې ونغاړې له تنه

یا وصال مې د اشنا کړې را په برخه
یا شهید مې کړې سنګرکې پر وطنه

نور مې وسرې غوټۍ د هیلو خدایه
یامې ګل غوندې خزان کړې له ګلشنه

یم پښېمانه توبه ګاریم په دا تیرو
ته راوبخښې ګناه او تیرو تنه

سوال زاري کې ستړیا عار نه ګنم خان ته
که هر څو مې سترګې سرې زړه شي دردمنه

ما "حماد" کړي شنه لو خړه دیار درکې
یا مې ستا له ستر صفت کړې برخهمنه

# په اوسني پښتو ادب کې داستان

نهضتمل

په اوسني پښتو ادب کې داستان د حکایتي ادب څخه د داستان فورم ډیر مینه وال لري چې په نوی طرز داستان لیکنه هم د رواني پیړۍ د لومړیو وختو څخه راپیل کیږي او دغه کارته په خاص ډول په پیښور کې پراختیا ورکول کیږي . دا ځکه چې د لومړي ځل له پاره د چاپ وسایل برابر شویدي . دا ځکه چې په عامه غوښتنو کې داستان ته زیاته مینه موجوده ده . نو پخوانیو فولکلوري افسانو په اړخ کې د داستان لیکلو ته هم زیاته پاملرنه کیږي . په دا ورسته کې د مطبوعاتو له لارې داستاني خپروني پراختیا پیدا کوی د راډیوئي نشراتو سره د داستان لیکنه او د داستان له اوریدو سره مینه ډیره پیسی عامه شوه . څرنګه چې د لیکلي داستان څخه یوازي د سواد خاوندانو استفاده کولای شواي ؟ خو د راډیوئي داستانونو څخه په عامه سطحه کې هغو کسانو ګټه واخیسته چې د سواد د لوستني څخه محروم وه پدې ډول په پښتو داستان لیکنه کې تر ناول لیکنی ډیره پر مختیا راغله . په پښتو کې زیات شمیر داستاني اثار رامخته شوي چې د فورم له پلوه د پام وړ او د محتوا له پلوه یې څه ناڅه کمزوري وه . د دې علت خو دا وو چې د داستان لیکوال تولنیزو مناسباتو د پیژوندلو په برخه کې علمي کمزوري درلودی او په هغو مجراو کې چې په داستان کې به یې په حرکت راوستلی یوازي په شکلي برخه تکیه کیدله دیوه ښه داستان په لیکلو کې اصول او حدود چې د ناول په برخه کې بیان شوی دلته هم د تطبیق وړ دی . څرنګه چې ناول تر داستان وړوکی دی د نور جوړښت په فني برخه کې یو څه توپیر راځی د محتوا له پلوه هغه علمي سلوب چې د یوه ناول په لیکنه کې باید مراعات شی په داستان کې هم مراعات کیږي د کوزي پښتو نخوا دلیکوالو د داستان یو نمونه را اخلو :

## داستان

دا داستان د ( صفدر په نامه ) دی ورته غوږشی .

صفدر د سواد او لوستلو سره آشنا کلیوال سړی وو چې د چاپیریال شرایطو له تنګسو سره مخامخ کړی وو

د ده د انګریز اداري څخه ښه نه راتله . پدغه وخت کې د ملکنډ اجنسی په ډیر قوت وه . او د انګریز منصبدارانو په زور او رشوت هلکان د خان کړی وو . د صفدر چې ډیر په وطن کې زړه تنګ شو . نو مخ یې د آزادو قبایلو خواته ونیو او هلته لاړ . په یوه کلی کې ډیره شو . ده د کلي وړو هلکانو ته لیك او لوست ور زده کړ او کار یې پیل کړ . د قبایلو خلکو هم ده ته د عزت په سترګه کتل . پدې ډول څو کاله تیر شول . پدغه مده کې د قبایلو خوا د انګریزانو سره د جنګ جګړې دروند کار روان وو . او خلکو به ویل چې پدې کار کې صفدر د یو روش خاوند دې . دی خبری تر ډیره ځایه حقیقت درلود .

انګریزانو د صفدر عکسونه پیدا کړل او د شا او خوا کلیو هلکانو ته یې ولیږل چې که د دغه عکس خاوند

چا ولید او اجنسۍ ته یې معرفي کړ نو بخشش به یې په برخه شي .

صفدر پس له څو کالو نیت وکړ چې خپل کلي او کورته یو ځل راشي او دا کار هم باید په پټه وکړي . دی چې خپل کلي ته راتلی په لاره کې د یوه کلي سرته د تیریدلو په وخت کې یوې چینې ته ور وګرځید چې څه اوبه وڅښي . یوې پیغلې منګی ډکاوه . او د وطن د دود او رواج سره دغه چینې ته به چې ښځو اوبه ځیني وړلې د نارینه وو ورتګ ممنوع وو . خو صفدر پدې پوه نه وو چې چینه د ښځو له پاره ده .

کله چې چینې ته ور نیږدې شو نو پیغلې ږغ ورباندې وکړ چې ته څوک یې چې د ښځو چینې ته راغلی یې ؟ صفدر د هغې څخه معافي وغوښتله او ویې ویل چې تږی یم . نور بیرته شاته روان شو .

پیغلې چې د صفدر تنده ولیده نو یې ورته وویل : " اوبه وڅښه او ژر له دغه ځایه لرې شه . صفدر چې په چینه اوبه وڅښلې ناځاپه یې په اوبو کې د پیغلې مخ ولید او لدې سره یې سم زړه بایلو . د صفدر څخه نور کار او روزګار پاته شو او پدې کلي کښې یې داسې استوګنه غوره کړه چې د چا ورته پام نشي .

دی به هره ورځ د هغې لارې په سره تیریده چې هلته به نجلۍ د اوبو دپاره چینې ته تلل . څو هغه پیغلې ووینې چې د چینې په غاړه دی . چیرې چې ده خپل زړه ورسپارلی وو . د پیغلې هم زړه د صفدر سره وو . خو د وطن دود او دستور دې ته اجازه نه ورکوله چې هغې ته سترګې لږ غونډې وروړوي .

صفدر چې څو ورځې دغه کار وکړ . د کلیوالو پاملرنه یې ځانته ورواړوله یوه ورځ د هغې پیغلې پلار ملك پاینده د ده په تعقیب کې سو او صفدر یې پداسې حال ونیو چې د یوه پټه ځایه یې نجونو ته کتل . ملك پاینده صفدر خپل حجرې ته راوست . او د دې سره سم یې هغه عکس راواخیست چې د اجنسۍ د خوا انګریزانو ده ته رالیږلی وو . کله چې یې عکس او صفدر ته وکتل او پدې پوه شو چې د عکس خاوند دغه ځوان دی . نو سمدستي یې هغه لاس تړلی په اجنسۍ کې انګریزانو ته وسپاره او خپل بخشش یې واخیست .

د ملك پاینده لور چې صفدر د چینې په غاړه لیدلی وو چې هر څو کوښښ وکړ پلار یې پدې راضي نکړ چې صفدر خوشې شي . او دا پیغله په ده پسې دومره وځوریده چې اخیر لیونۍ شوه . صفدر څوکاله د انګریزانو په جیل کې وو . او پیغله ورو ورو د پیغلتوب حد ته ورسیدله . چې نور به ببر سر او لڅې پښې په کلي کې ګرځیده . او د صفدر نوم به یې په خوله جاري وو . د دې کورنۍ اواره شوه او دې ته به هم چې د صفدر نوم چا وراخیست نو په چغو چغو به یې وژړل . او ټولو خلکو به ویل چې صفدر انګریزانو تورو اوبوته بوت او هلته یې په چونه کې سوځوی . صفدر په زندان کې د پیغلې د حال او احوال څخه خبر وو . کله چې د انګریزانو دوره پای ته ورسیده او انګریزان ووتل نو صفدر هم د نورو بنديانو سره يو ځای راخوشې شو .

ده به د ختیو مزدوری کوله . او دپښتو د دود او دستور سره څرنګه چې دی تور شوی وو . او یوې پیغلې ته د لارې په نیولو متهم وو نو ځان یې نشوای څرګندولای . خو زړه یې بیا لدغه پیغلې سره وو . څه وخت وروسته په پټه د ملك پاینده کلي ته راغلی او هلته یې خپله ببرسرې لیونۍ پیدا کړه . دی پوهیده که هغې ته ووایي چې زه صفدر یم نو د هغې زړه ته به ونه لویږي ځکه د هغې په زړه کې صفدر لاپخوا مړ وو . نو پیغلې ته یې وویل چې لیونۍ راځه د صفدر قبرته دې بوزم . لیونۍ هم ورسره روانه شوه . صفدر لیونۍ پیښور ته نیږدې . یوې هدیرې ته ورسوله او یوه قبر ته یې ودروله او ورته یې وویل : دغه دصفدر قبر دی . لیونۍ پرې پریوته او ویې ژړل خو پدې پوه نشوه چې کوم سړی دې ته دصفدر قبر ورښیي . هغه هم دغه صفدر دی . چې د دې پلار انګریزانو ته پلاس ورکړ او دا د هغه په مینه کې لیونۍ شوه صفدر نور د همدې لیونۍ سره په اوسیدلو پیل وکړ . دوی په هغه هدیره کې ناست وو چې لیونۍ به د صفدر قبر ته ژړل او صفدر به د لیونۍ په مینه کې لاهو وو .

ښایست هغه میلمه دی چې په هر کور کې قدر او عزت لري " ګوته "

# سمبولیزم او ادبي جنون

مهدی " خلیق "

د سمبول کلمه د یونـاني سوم بولـون Sumbolon څخه اخیستل شویده او د دوو پیلو توتو د میلولو معنی ورکوي سمبول د سومبالو Sumballo د فعل څخه اخستل شویدی او د زماني په تیریدو د سمبول ډیر پیچلي تعریفونه شویدی لکه څنګه چي اندره لالاند وایي : هره محسوسه نښانه چه د یو غایب او نه مشـاهده کوونکي شي د طبعي رابطې ذکر کوي هغه سمبول دی او ژول لومتر داسې وایي چه سمبول یو تطبیق دی چه فقط په دویمه برخه کي موږ ته راکړه شویده او د پرلـه پسـې استعمارو یـوه دستګاه ده الکسندر سومه فرانسوی شاعر بیا داسې وایي چې د شاعر په نظر ټوله ښیان سمبولیك دی او هغه " شاعر " کوښښ کوی چې د ابتدایي ژبې هغه نښاني چې اله " ج " و انسان ته وربښودلي دي ومومي او په لغوی معنی سره......

انسان

د درد خالي نه دردونه

د دردونو کاروانونه

د دنیا دنیا دردونه

په وجود د دې موجود کي

چې را درومی هسی زیږی

دا چینه د احساسانو

دا آینه د فیوضاتو

ډیر حساس په تاثر کي

د عصبانو زوږ سمبول دی

هم عامی خکه مسئول دی

هم ترعرش وفرش اوچت او هم مجهول دی

دا به څوك وی ؟!

دا وجود به مستقل وی

سمبولیزم د نښاني ، رمز ، اشارې او علامې په معنی دی چه زیاتره د عقایدو او پښتو بیانول په سمبولیك ډول سره کیږی په ادبی اسلوب او سبك د تشبهاتو کارول دي لکه سپوږمی د ښکـلا ، سرو د سمسورتیا ، آزاد او رعنـا قد او ګل د تروتـازه او سورنګ مظهر او سمبول په تشبیح کیږی یا په بل عبارت د ډول - ډول مفاهیمو او مانا ګانو له پاره د نښانو په علایمو کارول سمبول دی او هم په ادبی ویناد هغو څو تنو فرانسوی شاعرانو سرلیك دی چې د نولسمی پیړی په آخیر کي د ریالیسم ، نچرلیسم او پارناس د مکتبونو په وړاندی ودریدل ، دا باید وویل شی چې دغه مکتب زیاتره د شعر په چوکاټ کي منعکس شو ، او د نوموړی مکتب محکـم او ښسټ ایښوونکی فرانسوی شاعر شارل بودلر وو ، دوی غوښتل چه نوی لاره ومومی چې خپل افکار په اشاره او رمز سره ووایي نه په ښکاره او لغ ډول له همدې لیکنی یې د شیانو ، نورو او کنتی داوازونو له پاره د علایمو په کارونو پیل وکړ یعنی د مفهیمو او باطنی مطالبو ( درونی مطالب ) د پاره په ظاهری علایمو ( بیرونی علایم ) او مادی صورت باندی قایل وه .

سمبولیك شعر ، بودلر خپله د شعرونو ټولګه د ( سرګانو ) تر سرلیك لاندی ( Les Fleurs dumal ) خپره کړه چې پر ادبی غونډو یې ښه تاثیر وکړ ، پداسې حال کي چې د فراسي خلګ یې هم متاثره کړه ، د دغه مکتب پلویانو داسې عقیده درلود چې باید د انسان احساسات او عواطف په راز راز اشارو او رمزونو چې د شاعرانو اصلی موخه ده بیان او وویل شی ، بر خلافه د پارناسیانو چې په باطنی غوښتنو باندی عقیده نلری او سمبولیستانو دا اعلان وکړ چې شعر باید د انسان د ژورو اندیښنو معرف وی .

او دوی به ویل چې شعر بیله دغه بله دنده نلری نوموړی نوښت ګرو شاعرانو دا کوښښ کوه چې داسې شیې په علایم پیدا کړی چه عواطف ورسره تشبیح په منتسب کړی او په خارج د عالم واقع کې داسې سمبولونه وټاکی چې وکولای شی روحی تظاهرات د هغوی سره تشبیح کړی پارناسیانو دا عقیده لرله چې کلام باید یو قالب ولری مګر سمبولیستانو د وزن او قافیې د آزادی اعلان وکړ او دوی به ویل چې هیڅ ډول بندیز شرط او پابندی نشته شعر باید ساده ، ښکلی ، روان او دآهنګ درلودونکی وی او دا لازمه نده چې د ټولنی وټولو پرګنو ته وړاندی او عرضه شي سمبولیستانو په شعر کي د عجیبو اوغریبو مفاهیمو داوډل مطرح کړل او شعر یې ویوې داسې نړی ته ور وغځاوه چې نه منوونکې او ډیره عجیبه وه او پدغونو و عقایدو یې شعر د ژوند او چاپیریال څخه لیری و یوه نا اشنا محیط ته وخوځاوه داسې نامالومه مطالب یې طرح کړل چې د تفسیر او توجیر څخه یې دوی پخپله عاجزه او ناتوانه وه .

د سمبولیزم د مکتب مشخصات

۱- و یوې داسې نړی ته عقیده درلودل چې د دغی نړی څخه بیله او مسوی وی او په وهم او اشباح باور درولودل

۲- بـل کتنـه او پـاس نسبت د ژوندانـه ومظاهروته او د بشر د نیـك بختـی څخه انکار کول .

۳- په مفاهیمو کې کامل او پوره ابهام او تعقید او د مانا او الفاظو لیری والی د دوی د بیان مشخصات بلل کیږی

۴- پر نړی باور نه درلـودل او د دې نکـی قبلول چې ژوند ( هستی ، زموږ د افکارو انعکاس دی او موږ یو چې ودې خارجی ته شکل وربخښو .

پاڼی

# د اناتول فرانس او نسیم حجازي تر منځ یو روایتي اختلاف

جلال خپلواک

مخې تـه مـې د نسـیم حجـازي دوه ناولونه محمد بن قاسم او دیوه غـازي داسـتان ایښی دي او ورسـره ښی اړخ ته مې چې نیمه څنډه یې د یوه غـازي پـه داسـتان ورسـپره ده . د لینـدی او مرغومـي میاشـتو لپـاره ( غضنفـر ) صاحب ادبي تحفه یعنـی داسـتانونه مجله ایښی ده . د مجلې پـه اووم مـخ کې د ( ژاندارك ژوند ) ( بده پیښـه ) ( طلایي اشعار ) او ( خدایـان تږي دي ) د مولـف ( انـاتول فرانـس ) فرانسـوی لیکوال یوه لیکنـه چې عنوان یې ( مینـه او کینـه دي ) او د هیـواد د مشهور ژباړن ( نصرالله حافظ ) ژباړنه ده . دڅه راښودلو په حال کې وینم بل پلو تـه د نسـیم حجازي لیکلی دوه ناولونـه ( محمد بـن قاسم ) او ( دیـوه غـازي داسـتان ) چې ښاغلـی محمـد زبیر شفیقی ژباړلی دي راتـه پـه تـور مـاښام د یـوه مسـافر لـه تـور واوړال څخه د یـوه جوړ شوي نښان چې ډیر هیوادونـه یـې پـر تنـدی لیـك دي تصویرونه راښیي .

گرانـو لوسـتونکو ! زمونـږ د همـدې بحث د سرتکی د اسلام د ستر مجاهد او بریمن فاتح محمد بن قاسم د مرگ روایـات دي هغـه هـم ځینـی د نسـیم حجازي لـه قوله او ځینـی یې د انـاتول فرانس خبري دي . دلتـه بـه د کـار د آسانتیا لپاره لومړی د نسیم حجازي هغـه جملې راواخلـو چې محمـد بـن قاسم پکی څه ډول اوولـی وژل کیږي؟ بیـا بـه د ( فرانـس ) هغـه تصویرونـه راواخلو چې محمـد بـن قاسم پکی پـه شهادت رسیدلی دي . سره پرتلـه بـه یې کړو او بیـا بـه یـې یـوه کـوچنی ارزیابی وکړو . د حجازي په نـاول کې اصـلا څو پـانی مخکـې د مځمـد بـن قاسم د ژوندانـه د هغـی پیښی چې وروسـته یـې پـه شهادت تمامیـږی . یوتت غوندې تصویر ځان ښکاره کوي . یعنی هغـه چې سلیمان پـه یوه پهره کې ناسـت وي محمـد بن قاسم ورځی آسونه ترینه بیـایي او د سلیمان د یوه ملگری صالح له لاسه توره غورځوي خو په ۱۸۳ مخ کې نوموړی تصویر د یـوه کرکـتر پـه څیـر برجسـته ځان ځرگندوي او د نـاول سره د محمـد بـن قاسم تر جنازې پورې ملگرتیـا کوي . ( محمد بن قاسم ) ۱۸۳ مـخ ( ولید ) وویل بچیه زه ستا په زړورتیا اعتراف کوم خو دا زړه ورتوب نه ناپوهي ده ته له خول او زغـري پرتـه د عربـو د غـوره نیزه باز مقـابلې تـه ورونلـی یې او کـه هغـه دا د ځان توهیـن وبالـه زه ویریـږم چې تـه بـه بیـا پـه اس د سپریدو تـوان ونلـري پـه ۱۸۵ مـخ کـې یـې هـم وکوري . " محمد بن قاسم یوه خواتـه ټیټ شو د سلیمان د نیزې لـه گوزارنـه بچ شو سلیمان هم چپ لوری ته ټیټ او د خپـل حریف دوارنـه یې د سـاتلو هڅه وکړه خو لـه ده نـه هـم پـه زړتـه چالاکی محمد بن قاسم د خپلی نیزې څوکه د هغه پـه لور ورواړوله او د هغه پـه ښی پښتـی یـې گوزار وکـړ سلیمان خپل توازن ونـه شو ساتلی او د اس لـه راغورځیدلـو سره سم بیـا اوچت شو پـه پښتـی یې لاس ونیـو . محمـد بـن قاسـم لږ وړانـدی تـیر شـو بیرتـه یـې اس راوگرځاوه . لـه اس نـه پلی شو سلیمان تـه یې پـه مصافحـه لاس وراوږد کـړ . خـو هغـه د لاس د ورکولـو پـر ځای مـخ ترینـه واړوه . ( محمد بن قاسم ) ۱۶۹ مخ یـو سپور راوړاندی شو محمد بن قاسم ته یې یو لیـك ورکـړ او ویـې ویـل : دا د امیرالمؤمنین سلیمان بن عبدالمالك لیك دي . محمد بن قاسم تکان وخوړ ویـې ویـل امیرالمؤمنین ... سلیمان هغه ته ځواب ورکړ : هو ! خلیفه ولیـد وفات شـو . محمـد بـن قاسـم ( انالله و انا الیـه الراجعون ) وویل او پـه بیړه یې لیـك پرانیسـت ویـې لوسـت او تـر لږ شیبې پورې یې سر پـه چورتونو خوړند شو . بیا یې سر اوچت کړ لـه سپاهی تـه یې پوښتنـه وکړه : زمـا لـه سلیمان نـه همـدا طمعـه وه . یزیـد بـن ابوکبشـه څوك دی ؟ یوه پـه عمر پوخ سړي اس

داورانديې کړ ويې ويل زه يم ! محمد بن قاسم اس ورورانډی کړ يزيد بن ابوکبشه ته يې لاس ور اوږد کړ او ويې ويل . تاته دې د پوخ مشرتوب مبارك وي ، زه د اميرالمؤمنين زولنوا چولوته تيار يم . ښاغلي لوستونکو ځيني تصويرونه بحث اوږدوي خو د ښه تسلسل د پيدا کولو په خاطر به يې ورسره ملګري کړو .

( محمد بن قاسم ) ۲۷۰ مخ محمد بن قاسم وايي : ما سهار ته دمشق ته د تلو پريکړه کړيده او پدې پريکړه بيا غورته تيار نه يم . د يوه سپاهي تر ټولو لومړی فرض د خپل امير اطاعت دی . تاسو له دې پيښي نه مه خفه کيږئ او د خپل نوي حاکم پوره مرسته او ملاتړ وکړئ .

اميرالمؤمنين سليمان غالباً دا آزموينت کوي . چې زما په زړه کې د امير د اطاعت جذبه شته او کنه . ( محمد بن قاسم ) ۲۷۱ مخ او زما زړه ګواهي راکوي . چې سليمان به له تاسره ډير بد چلن وکړي . که ستا د عربي ملګرو په زړو کې د خلافت د دربار احترام وي - وي به - خو مونږ د داسې خليفه درناوي ته تيار نه يو چې سند له خپل نيکي کوونکي نه محرومول غواړي . مونږ په مرګ او ژوند له تاسره د ملګرۍ وعده کړيده او زمونږ دا وعده به ماته نشي . که دا مسله يوازې زما او د سليمان ترمنځ واى نو ما به هغه ته وسله نه ايښوده . خو زه هغه قوم ته وسله ايږدم چې سليمان يې خپل خليفه ټاکلی . که زما مرګ مسلمانان له يوه لوی انتشار او اختلاف نه ژغوري نو زه دا خپله نيکمرغي ګڼم . ( محمد بن قاسم )

۲۷۴ او ۲۷۵ مخونه يزيد وويل : زه تاته د سند د حالاتو د پوښتني لپاره نه يم راغلی . زه تا ته د دې لپاره راغلی يم چې ته به همدلته پاتې کيږې محمد بن قاسم ځواب ورکړ . ستا د همدردۍ نه مننه . خو زه د اميرالمؤمنين د حکم نه سرغړونه نشم کولی . يزيد وويل : مګرته نه پوهيږې چې سليمان ستا د وينو تږی دی . محمد بن قاسم : ماته مالومه ده خو زه نه غواړم چې د ځو ځاځکو وينو لپاره اسلامي نړۍ پردوو برخو وويشم . يزيد : ته په دې عمر کې زما له اټکل نه زيات د حکمت خاوند يې . بيا هم که زه پخپله ولاړشم او سليمان ته ووايم چې په سند کې تر يولك زيات پوخ د محمد بن قاسم ملاتړ کوي نو هغه به له تاسره د جګړې خيال پريږدي . محمد بن قاسم : بيا به هم د دې نتيجه دا وي چې زه او له ما سره به د مسلمانانو يوه لويه ډله به لهٔ مرکز نه جلاشي . مونږ به پر دې نړۍ د ټولنيزو ګډو هڅو او جهاد نه محروم شو . زه تاته د دې تکی ښودل لازمي نه بولم چې د نړۍ ډير لوی لوی ځواکونه ګډوډۍ او د يوه مرکزيت نه درلودلو ډوب کړل . ( محمد بن قاسم ) ۲۸۴ مخ که زما انجام په خلکو کې دا اثر وکړي او خلك دا احساس کړي چې امارت يې د کورنی ميراث بلل غلطي وه او دوی له سليمان نه وروسته د دوی د کورنۍ د کوم سړي پر ځاي د مسلمانانو يو صالح سړي ته د خلافت منصب وسپاره نو دا يو داسې
مقصد دي چې زه پرې قرباني شم د ژوند تر ټولو لويه نيکمرغي او سعادت بولم . پاسني تصوير نه وړاندې په همدا مخ کې د مالك په ځواب کې محمد بن قاسم وايي : زما د ژوند د ساتني لپاره ته د ځو مره مسلمانانو قربانول روا ګڼې؟ آيا له دې نه وړاندې د ښهرې د خلکو بغاوتونو اسلامي نړۍ ته پوره زيان نه دی رسولی ؟ آيا زما ژوند دومره ارځښتناك دی چې بايد د لکونو مسلمانانو توري يو پر بل وراوچتې شي . په زرګونو ښځې کونډې او ماشومان يتيمان شي ؟ که زه د دومره مسلمانانو د تباهي د مخنيوی لپاره قربان شم هم نو ستا په ګومان زما ژوند څوشي له لاسه ووت ؟ ( محمد بن قاسم ) ۲۹۰ مخ د محمد بن قاسم په هکله حضرت عمر بن عبدالعزيز چې له مدينې منورې نه د زبير سره دارلخلفا يعنی دمشق ته تللی وو ، خليفه سليمان بن عبدالمالك ته وايي : "آيا ته له ده نه دا بدل اخلې چې هغه د حجاج بن يوسف زوم دي ؟ او د جګړې په فنونو کې هغه پر تا برلاسي شوي وو ؟ کاشکې لکه څرنګه چې هغه د يوه سپاهي مسئوليتونه پيژني تا د يوه امير مسئوليتونه پيژندلی وای . ( محمد بن قاسم ) ۲۹۱ مخ عمر بن عبدالعزيز وويل : نو تا د هغه د وژلو امر کړيدی ؟ سليمان په هو سر وخوځاوه . ( محمد بن قاسم ) ۲۹۳ مخ زبيرپه وروستي چونې کې آس بدل کړ له دوه ميله مزله وروسته يې د ښار د جوماتونو منارې وليدې . هغه په هرګام کې د ويرې او انديښنې په طوفانونو کې د اميد ډيوې بلولې . د ښار په لويديځه دروازه کې يې د خلکو ګڼه ګونه وليده زبير د آس قيضه راکش کړه د ځوتنو ځوانانو په

اوروېي جنازه ولیده (محمد بن قاسم) ۲۹۴ مخ ځوان هغه په زوره وښوراوه ويې ويل: زبيره! زه خالديم! ماته اوګوره محمد ولاړساه يې ورکړه. د سند لمر د واسط په خاوره کې مخ پټوي جګ شه خلك ستا د دوست جنازه وړي.

اوس به د (اناتول فرانس) له ليکنې هغه ټکي راواخلو. د کومو مې چې لړ وړاندې ژمنه درسره کړې وه. خو دا يادونه بايد وکړم چې د اناتول په ليکنه کې د هغې مطلب د محمد بن قاسم دردونکې شهادت ندی. بلکه هغه غوارې چې مالينه زړوره او وطنپاله وښيي. مګر په اخير کې بيا توري تري بغاوت کوي د دوهمې موضوع (د محمد بن قاسم شهادت) رنګ وربانديې غالبيږي.

(داستانونه) ۷ مخ: مالينې وروړاندې شوه او د هغې ډيوې لاندې چې د خيمې په چت پورې ځوړنده وه ودريدله او نقاب يې له مخې نه ليرې کړ. خو چې کله د ډيوې رڼا دمالينې پر مخ پريوتله نو د عربو د قوماندان د زړه په کوريې زلزله ګډه کړه. د هغې پراخه او سپين وچولي، ښکلی مخ، غټو شهلا سترګو، اوږدو ښو، او د تورو غونديې کړو وروځو د هرچا په ګوګل کې زړه په ريږيدولو راووست. قوماندان يوه شيبه هغې ښکلې او زړه وړونکې مخ او څيرې ته وکتل. خو ناڅاپه يې په غږو بانديې يو ډول لړزه راغله او يو عجيبه غونديې احساسات تريې راچاپيره شول.. زه مالينه د دغه ځای د پاچا لوريم زما پلار تا وواژه... زه راغلې يم څو له تا نه وغواړم چې زما پرملت يو څه مهرباني وکړې. ۱۵

مخ او د ډيوې دوړانګو لاندې يې په ډيره بيړه تور پوړنې له ځانه ليرې ګوزار کړ او مالينې داسې لوڅه پوڅه ودريدله لکه څنګه چې له موره زيږيدلې وه... اې بد بيني او هر ځايې ښځې ډير ژرله دې ځايه ووزه. د ا د محمد بن قاسم خبره ده او مالينه وايي. اې قاسمه ما په نکاح واخله او درسره مې بوځه... خو د دغه ښار له کلابندی څخه تير شه.. محمد يوه شيبه بې واکه او په فکر کې شو خو هر څنګه چې وو د اسلامي حدودو د جذبې په زور يې خپل ځان قابو کړ (داستانونه) ۱۶ مخ پوه شه چې ته پرما ډير ګران يې. هو پرته له دې چې وغواړم او کنه ته رابانديې ګران يې خو پديې خبره هم پوه شه، چې خپل هيواد رابانديې له تانه هم ډير ګران او عزيز دې او دا چې ته زما د هيواد دښمن يې... زه به له تا څخه د خپل هيواد کسات ضرور اخلم او تا به هم وژنم. بايد چې تل زما لخوا نه په ويره اوډار کې و اوسې. (داستانونه) ۱۷ مخ هغه ورته وويل: زه صالح د نويره زوی يم او د خليفه له نژدې ملګرو څخه يم. مالينې په دغه وخت کې يوه کريکه وکړه زه وږې يم.... دوې ورځې کيږي چې څه شی مې ندی خوړلی (داستانونه) ۱۹ مخ حاضر خلك ټول د مالينې په دغه خبره حق حيران شول په تيره قاسم چې رنګ يې له مخه والوت ... چې هر څومره ژر کيدای شي مالينه دې د اسلام د خليفه حضور دمشق ته وليږی. محمد بن قاسم وايي. ډيره ښه ده زه به مالينه دمشق ته وليږم، ځو باور لرم، چې خليفه به د عدالت سره سم کړه وړه وکړي. (

داستانونه) ۲۰ مخ ځوان قوماندان قاسم، چې د مالينې له دغه ډول چارې څخه يې زړه له تورو وينو ډك شوي وو. په خپل ځان قابو نشو او له سترګو څخه يې اوښکې راروانې شوې. مالينه د خلافت دربار ته ورغله. خليفه يې وليدی چې په يوه چوکۍ ناست وو..... خليفه مالينې ته وايي: ستا لپاره به ښه دا وی چې يو څه له پوهې نه کار واخلې او زما د ځوان قوماندان زړه ورقوماندان او فاتح قوماندان سره واده وکړې. مالينه وايي: ای د اسلام خليفه که ته ما مړه هم کړې نو زه به له هغه سره واده ونکړم... ايا دا خبره امکان لري! چې زه د هغه نامرده سره واده وکړم چې پرته له شرعي نکاح څخه يې پرما تيري کړيدی. په دغه خبره د خليفه سترګې له ستر غليونه راووتې په لوړ اواز يې وويل: دا څه وايې؟ داڅه اورم؟... (داستانونه) ۲۱ مخ صالح وويل: قربان دې شم. ز ه پرته له حقيقت څخه نورڅه نشم ويلی. ما دغه نجلی د شپې له خوا وليدله. چې په جړو ويښتانو په داسې حال کې. چې نيمه لوڅه شوي وه او ژړل يې د قاسم له خيمې راووتله.. خليفه وايي: ډير ژر هغه راوغواړې او د قوماندانی چارې حسين بن عبيد ته وسپارې. خو د دې په مقابل کې حجازی د حسين بن عبيد نوم نه اخلی او وايې: چې اولس ۱۷ کلن قوماندان محمد بن قاسم. يزيد بن ابوکبشه ته د پوځ د مشرتوب مبارکی وويله.

(داستانونه) ۲۲مخ قاسم د دغه خبره د اوريدونه وروسته سم خوراك نشو کولی او خوب يې د سترګو له کوره

کده کړی او خلیفه وزیران او ملبنه په دربار کې حاضر وو قاسم په سي حال کې ورننوتی چې رنګ یې تور هم سي تبتبدلی وو سر کی یې په کونکوکی ننوتلی وې او ملا یې له ډېره غمه کږه شوې وه

دلته د دواړو خواو ترمنځ خبره شدت مومي او داسې مختلف مفهومونه ترینه په لاس راځي چې یو ترېله څرګند توپیرلري . اناتول چې کله محمد بن قاسم وژني نو هغه د خلیفه په دربار کې دننه بې له کومې شکنجې او تکلیف نه اسانه په شهادت رسول کیږي . خو نسیم حجازي د دې پرخلاف چې محمد بن قاسم د خلیفه په دربار یعنی ( دمشق ) کې په شهادت ورسیږي د (محمد بن قاسم ) په ۲۷۶مخ کې داسې وایي : یزید وویل د سلیمان د مشاویرینو له محمد بن قاسم سره یوازې پردې دښمني ده چې هغه د حجاج بن یوسف زوم دی .. سلیمان به هم دومره د نفوذ خاوند زیات ژوندي پرینبودل خطرناك وګني . ( محمد بن قاسم ) ۲۸۳مخ څکه خو هغه پریکړه کړی چې محمد بن قاسم سیده واسطه ته بوزی .. محمد بن قاسم خواب ورکړ . زما پخوا هم دا ګومان وو چې دوی به بصرې ته زما د بیولوغلطي ونکړي . بیا به د ( داستانونه ) مجلې ۲۲مخ ته راشو ( داستانونه ) ۲۲مخ په قاسم دومره هیبت راغلی وو او داسې کمزوری شوی وو . چې هر څومره زوریې وکړ له خپله ځایه جګ نشو . یوه چیغه یې له خولې ووته او همداسې په خپل ځای چرپ او غلی پاتې شو ... خلیفه د قاسم د دفاع د اوریدلو په انتظار پاتې شو . تولو خلکو قاسم لیدی . چې د دې سره یو وژونکی چوپوالی د دربار په تالار خپور شو د محمد بن قاسم د زندان حالات ( د یوه غازي داستان ) داسې انځوروی ( د یوه غازي داستان ) ۱۷۵مخ ابن صادق په سپکه لهجه ورته وویل ! د حجاج نازولیه څنګه یې ؟ محمد بن قاسم تکان وخوړ ده ته یې وکتل خو څه یې ونه ویل . ما پیژنې ؟ هغه بیا پوښتنه وکړه . محمد بن قاسم ځواب ورکړ زما نه یادیږی ته څوك یې ؟ محمد بن قاسم ور وړاندې شو د پنجرې او سپنې یې ونیولې ابن صادق په چوپه خوله په خپله همست هغه وواهه او نارې یې پرې تو کړې ...

له دې وروسته ابن صادق ښکنځل کول او بیرته ولاړ . ( داستانونه ) ۲۲مخ یو خل قاسم خپل سر راټیټ کړ او یو غمجن او روح سوزونکی نظریې چې د هیڅ یو انسان په سترګو کې نه وو کتل شوي مالیني ته وکړ ... چې له دغه نظر څخه غم . خواشیني . رنځ . عذاب . سرزنش . او ملامتی څرګندیدله بیا یې مخ بل پلو واړوه او یو زړه دردونکې چیغه یې له خولې څخه ووته چې د دې سره یې سرپه سینه راښکته شو ... مالیني د هغه اوږې په زوره زوره ښورولې له خولې نه یې یوه له غمه او درده ډکه چیغه ووته او ویې ویل : تاسو زما په خبرو باور مکوئ .. هو هیڅ باور پر ونه کړې . پدې وخت کې د مالیني له لاسو څخه د هغه اوږې خوشې شوې او هغه بې روحه کالبوت په ځمکه پریووت . وړاندې تصویرونه مو ولیدل انشاالله چې پرې پوهیدلي به یاست . مخکې له دې چې د خپلو راغونډ وکړو تصویرونو ارزیابی وکړو د یوه غازي سره به همدا واقعه یو څه تر تعقیب لاندې ونیسو ( د یوه غازي داستان ) ۱۷۱مخ ستا نوم عبدالله دی هو امیرالمومنین ! د هسپانیې په پوځ کې له کله نه ورشریك یې ؟ امیرالمومنینه : زه له طارق (رح ) سره د هسپانیې په ساحل پلی شوم .. ښه د طارق په باب ستا رایه څه ده ؟ امیرالمومنینه : هغه په ریښتنی مانا یو مجاهد دی . او د موسی په باب څه وایې ؟ ۱۷۲ مخ زه شخصا د موسی له ستاینکو څخه یم او دهغه پر خلاف بده خبره ګناه بولم د ابن قاسم په اړه څه نظر لرې ؟ امیرالمومنینه : زه د هغه په باب له دې پرته نور مالومات نلرم چې هغه یو زړه ورسپاهي وو . سلیمان وویل ته پوهیږې چې زه له دې خلکو څومره کرکه لرم . نسیم حجازی ( د غازی داستان ) په ۱۹۹مخ کې د نعیم په ژبه چې د دې ناول اصلي او تکړه کرکټر یعنی غازي دی . د محمد بن قاسم قاتل په ګوته کوي او وایي : نعیم تکان وخوړ ویې ویل ابن صادق ! ته هغه پیژنې ؟ په دې کې ابن صادق دننه ورغی او د هغه په لیدو د نعیم په زړه کې وروګرځیدل چې یو نوی مصیبت یې په سر دریدلی . ابن صادق چې خپل پخوانی حریف ولید حیران ودرید . ولی ابن صادق ته ...؟ وویل دی زمونږ د پوځ ډیر زړور قوماندان دی نوم یې زبیر دی ابن صادق وویل : ښه او بیا یې لاس نعیم ته وروغځاوه خو نعیم هغه ته لاس ورنکړ . ابن صادق وویل : تا لکه چې ونه پیژندم ؟ زه ستا پخوانی دوست یم . ( د یوه غازی داستان ) ۲۰۰ مخ والی حیران شو

وي پوښتل تا د ده په باب څه شک واخیست دی خو زمونږ د پوځ تر ټولو غوره سالار دی . مګر دا تاته مالومه نده چې دی د امیرالمومنین ډیر بد دښمن دي او د ده نوم زبیر نه نعیم دي او د دمشــق لـه بندیخـانې نــه راتښتیدلی ... تا ته باید مالومه وي چې د هسپانیې د لوی مفتي سره خبرې کوې ! والي : او تاته هم باید مالومه وي چې زه دلته د هسپانیې والي یم ! سهي ! خو دا تاته مالومه نده چې زه د هسپانیې د لوی مفتي نه پرته نور هم ډیر څه یم ! نعیم وویل : دی نه پوهیږي زه به ورته ووایم . ته د امیرالمومنین دوست ، دقتیبه بن مسلم محمدبن قاسم ( رح ) او ابن عامر " رح " قاتل یې په ترکستان کې بغاوت ستا د مهربانیو په نتیجه کې وو .... نعیم د لیك په لوستلو شروع وکړه دا لیك خلیفه حضرت عمر بن عبدالعزیز " رح " را استولی وو . د هسپانیې والي لاسونه وپړ قول او څو تنه سپاهیان دربار ته ورننوتل ، هغه ابن صادق ته اشاره وکړه ویې ویل دی ونیسی !.

ګرانو لوستونکو لکه څرنګه چې له تاسو سره مې وعده کړیوه د دواړو په اختلاف کې واقع کسانو یعنې اناتول فرانس او نسیم حجازي روایات مو ولیدل .. اوس نو وخت رارسیدلی دي راځئ چې د خپل اندول ارزیابي وکړو څو پایله یې په لاس راشي .

### *د پورتني اندول ارزیابي :*

ترکومه ځایه چې خبره ارزیابي ده نو هغه به په یواځنۍ ځان داسې وي لکه یو سرکښه لیونی چې له یوه لاس څخه ټك خیژوي نو څکه خو به د نسیم حجازي سره یوه علمي ملګرتیا ورته ونیسو څو کار مو اسانه شي او ښه وربانديې وپوهیږو . خو که د اناتول په لیکنه کې مو کوم د استفادې ور بخرکې ولید هغه به هم تر ښه نه سپمو و . پردې خبره د سرې باور راځي چې نسیم حجازي ټول ناولونه او یا په هغه کې اصلي روایات ده له خپلې خیټې نه دي رانقل کړي . ځکه چې هغه په باربار وایي : یعنی د هغه په ناولونو کې دا ټکی ډیر خله لیدل کیږي چې د یوه مسلمان مورخ په قول او یا ( د اسلام د تاریخ په استفاده ) نو څکه خو تر کومه ځایه چې مستند قول په لاس نه وي راغلی باید ورسره وي منو . ښایي چې حجازي هم د محمد بن قاسم په اړه ځینې اناتول ته ورته نظریې او ګنګوسې اوریدلي یا لیدلی وي . څکه د ( محمد بن قاسم ) په ۲۶۱مخ کې دا ډول یادونه څه بلکې مکمله رد کړیده . ( محمد بن قاسم ) ۲۶۱مخ له دې سره د ښار مذهبي مشر دا اوازه هم په ښار کې خپره کړه چې ( لادهي د یوي ) ملکې د مسلمانانو له مشر سره په خبرو کې د خپل دین او وطن سره غداري کړیده .

۱- د دې پیښې په اړه ځینې تاریخ پوهان د دې خبرې د ثابتولو هڅه کوي چې ( لادهی د یوي ) د اسلام له قبلولو نه وروسته له محمد بن قاسم سره واده کړیدی او د هغې اصلي نوم ( عایشه ) ده . خو دا داستان زیاتره د هغو تاریخ پوهانو د طبیعت زیږنده ده . چې د هر لوي سړي سره د مینې او عشق یو داستان منسوبول ضروري بولي . همدغسې یو بل داستان هم محمد بن قاسم ته منسوب دي او هغه دا چې محمد بن قاسم د ارور له فتحې وروسته د راجه دا هر دوې لونې خلیفه ولید ته واستولې . یوې نجلی د پلار د وژلو د بدل په نیت ( خلیفه ولید ) د محمد بن قاسم پر خلاف راوپاراوه او ورته ویې ویل : چې محمد بن قاسم د خلافت دربارته له را استولو نه وړاندې د دوې دواړو خویندو عصمت لوټلی او ولید په غصه شو . محمد بن قاسم یې وواژه . د هغه له وژلو وروسته بیا نجلی وویل چې ما د بدل په خاطر دا کیسه جوړه کړې وه . او ولید بیا هغه هم ووژله . لومړی کیسه څکه دروغ ده چې ( لادهي دیوي ) د اسلام له قبلولو نه وروسته د مسلمانانو په پنا کې وه د مسلمانانو د امیر د مهرمنې په حیث بیا ددې منصب داسې هیڅکله نه وو چې بیا دې د سفیر په حیث ( ارور ) ته تللې وای . که دا ومنو هم چې هغې له خپل زوی سره ډیره مینه درلوده . خو دا څنګه امکان لري چې یو داسې ۱۷ کلن څوان چې د ټول هندوستان د فتحې اراده یې درلوده د ( ارور) د وړوکي مهم په خاطر خپله نوی مسلمانه میرمن د ( ارور) ډك دربارته استوي . بیا په داسې حالاتو کې چې " د ارور " خلك د دې په مسلمانیدو راپاریدلی هم شوای او د دوهمې کیسې په باب همدومره کافي ده چې د دې راویان هغه تاریخ پوهان دي چې دا هم نده ورمالومه چې خلیفه ولید د محمد بن قاسم نه وړاندې وفات شوی وو " که چیرې د نسیم حجازي سره دا خبره ومنو نو سړې پوهیلي شي چې اناتول دا خبره خیالي جوړه کړیده او یا یې د هغو لیکوالانو پیښې کړې چې

حجازي ورته مخکې اشاره وکړه . د دوی په لیکنو کې زیات اختلافات دلته راڅرګندیږي چې حجازي د ( راجه داهر ) لومړي قوماندان چې د مسلمانانو سره یې پوځ ونښت بهیم سنګ یادوی او بیا بهیم سنګ د ( لس بیلا ) په کلا کې تیښې کیږي او له محمد بن قاسم سره څو ورځې تیروي بالاخره د محمد بن قاسم تر سخت احسان لاندې راځي او مسلمان کیږي او محمد بن قاسم د عماد الدین نوم ورته غوره کوي . خو ( فرانس ) بیا هغه ( نرسا ) یادوي او ( مترا ) د ( مالیني ) د پوښتنې په ځواب کې وایي ( هغه یې ونیو په ځنځیرونو کې تړلی یې په ټول ښار کې وګرځاوه . د دوی دواړو هرټکي یو تربله په اختلاف کې موقعیت لري خو تر کومه ځایه چې زما نظر وربانډې لګیږي . د ( اناتول ) خبره هسې یوه خیالي افسانه ښکاري یا به یې بل کوم ځای داسې واقعه په ذهن کې ثبت شوي وي . یعنې هغه چې انسان یا خصوصا شاعر یا لیکوال ته کله کله ذره د ذرې په مقابل کې غر واقع کیږي » اوبیا به یې کرکترونه محمد بن قاسم مالینه او نور ورته ټاکلي وي او دا خبره هم عقل اخیستونکې ښکاري چې شاید هغه به د خپل اولس یعنې بت پرستو او کلیسایي وګړو روحیه ساتې او لازمه هم ده چې وې ساتې ځکه چې فرانس د خپل اولس یو لیکوال ( عکاس ) دي او فرانس یې د نړ پاچا بولي . نو د نړ پ جاهان ممکن دا کارونه کوي چې یوه موضوع هسې خیالي ولیکي هم د هغه شخصیت دا تضمینوي . چې فلانی ( کوم لوی لیکوال ) ویلي یا لیکلي دي دا به رښتیا وي . بالاخره ښاغلی حافظ صاحب وربانډې واوري . په پښتو ژبه یې هم راته د یوه واقعیت په څیر ترجمه کړی څو زمونږ لوستوالو ته په کار ورشي او مفکوره یې ورپاکه کړي . که چیرې کوم سړي په زړه کې خپله ښه نه وي . نو د فرانس له لیکنې څخه د اسلام سپکاوي هم جوړیږي هغه ټکي چه د ( خلیفه ) سره کارول شوي او یا د محمد بن قاسم ملا په څو میاشتو کې کړیږي نو دا زه داسې تشبه کوم اسلام د پیغمبرانو ( ع ) اصحابو کرامو ( رح ) خلیفه ګانو او مجاهد وفاتحانو په وړاندې ټاکلې او مخصوص مکلفات لري چې هر وخت باید په احترام سره ادا شي او درناوي یې وشي . خو اناتول پر خپله خوښه سپیڅلی حلقه ماته کړي او هیڅ پروا یې هم نلري . بس لیکنه پر مخ بیا یې زیاته خواري پردې کوي چه مالینه ترینه بدرنګه راتښتي په هره جمله کې زیات پام ورسره کوي . که چیرې یې په یوه نیم تصویر کې لوڅه پوڅه و دروي هم نو دا خو د دوي په ټولنه کې یو شهزادانه عمل دي . هیڅ پروا نکوي دا خبره هم ترینه په لاس راځي . چې په هغه وخت کې د اسلام خلیفه دومره بې عقل او تنبل وو . چې د مالیني په تش ژړا او یوه مکر یا فریب یې د سند لمر ( محمد بن قاسم ) تر خاورو لاندې کړ . دا خبره حجازي هم په لږ توپیر ورسره تر یوه ځایه بدرګه کوي خو هغه د هغه وخت خلیفه سلیمان بن عبد المالک کنې او کومه ښه خاطره هم ترینه نلري هغه داسې شخصیت بولي چې یوازې یې د محمد بن قاسم د مرګ ارزو نلرله بلکې قتیبه "رح" بن مسلم ( بن عامر "رح" او محمد بن قاسم "رح" یې ټول په شهادت رسولي دي . د خپلې بې عقلۍ په وجه چې امارت یې کورنۍ میراث باله او دا کسان ورته په خپل ذهن کې یاد یوه بې لارې او خائن بودا ( ابن صادق ) په مشوره خطرناک ثابت شوي وو . او که چیرې ریښتیا هم محمد بن قاسم دا ډول خیانت چې اناتول یې یادوي کړی وای . نو د اسلام هغه مبارك او په ماناکې پنځم خلیفه چې ډیرو نیکانو ورته ( ثاني عمر ) یاد وهم عمر ویلی دي .

څنګه او ولې دمشق ته دسلیمان دربار ته له زبیر سره د محمد بن قاسم په شفاعت پس خان سړی کاوه هغه خو د داسې خلکو په مقابل کې هیڅ رحم نه خوښاوه . ځکه چې قرانې حد دي . له دې څخه دا جوتیږي چې د اناتول خبره د محمد بن قاسم په روښانه شخصیت یو تور خو بې مفهومه داغ لګیدلي دي . صرف د خپلې روحیې له لوړولو پرته هیڅ تعبیر نلري . ځکه چې فرانس نه ماخذونه را اخیستي نه یې کوم مورخ یاد کړیدي او نه یې د لیکنې ډول او چوکاټ یوې تاریخي لیکنې ته ورته دي . د ښکلو الفاظو او جملو زوریې په حماسي اړخ کې زیات ازمایلي دي . او د لوستونکي لپاره یې یوه قلمي تلوسه پکې اچولې ده .






***تپه یا قبیله :***

په پښتني انسابو کې هم د خېل او هم د (زي) په نامه ګروپونه تر څو متعددو نسلي واحدونو پورته په سر کې یوه داسې نامه ته ځان رسوي چې هغه بېلابېل خېلونه او د (زي) ترکیبونه په یوه کړي کې کښیباسي. دغه راز لوی ټولنیز واحدونه چې لېږي د نسبي اشتراك په حوزه کې د (خېل) او (زي) په ترکیب کې ګروپونه تر یوه خاص بېلابېلي یا قومي نامه لاندې راټولوي زیاتره قبیلې یاتپې په سوسیولوجکي کلمه سره افاده کېږي زه چې د لومړي ځل دپاره دشیخ ملي د ویش د نظام په څېړنه کې د (تپې) پر کلمه باندې پیښ سوم چې د عربي ژبې د قبیلې معادله استعمال شوې ده نو مې دا ګمان کاوه چې ښایي (تپه) لغت به په ختیځ پښتنو کې د عربي د (طایفه) له کلمې څخه اخیستل شوی وي . . خو کله چې مې بیا دا کلمه د قبیلې په معنا د نعمت الله (هروي) په مخزن افغاني کې ولیده نو پر خپل پخواني ګمان باندې لږ څه شکمن شوم ځکه د دغه کتاب مولف هم د عربي لغاتو او هم د اعلامو په برخه کې کافي معلومات درلوده او البته د تپې او طایفې تر منځ په توپیر باندې ډېر ښه پوهېدی . له دې جریان څخه ما دا نتیجه واخیسته چې د پښتو ژبې په ختیځه لهجه کې د (تپې) د هغه ټولنیز واحد پښتنو نوم دی چې قبیلې د لغت او مفهومي حدودو سره برابري کوي د تپې په نامه که څه هم په پښتو ژبه کې خپل موجودیت بیل ځای تثبت کړی دی خو د عربي ژبې د (قبیلې) د لغت تر تاثیر لاندې د ملي محاورې د عادي ساحې څخه ګوښه سوې دی خو زما نه وروسته چې راورتي او (بېلیو) پښتو قاموسونه وموندل او پر دې لغت باندې وکتل نو هلته دا معلومه شوه چې تپه د پښتنو (قبیله) ده د راورتي په نظر دا پښتو کلمه چې د (تپ) له هندي ریښې څخه راوتلې ده د خېل (قبیلې)سیمې (تك) او علاقې په معناګانو باندې استعمالېږي

د پښتنو په نسبي شبکه کې چې کومې تپې یا قبیلې لیدل کېږي نو د خپلو نومونو له مخې یا د خېل (زي) د نهایي واحد په هغه سټره کړۍ کې راټولېږي چې ما په تېر بیان کې د مشتق نوم پر اېښې دی او یا یې د هغو نومونو په کړۍ کې خپل هویت ساتلی دی چې د جامد په نامه مې بللي دي او د نومونو څخه یې د ژبني خصوصیاتو پر بنا زیات تاریخي حقایق را ایستل کېدای شي تر اوسه د

پښتنو تولنې تپې د مدارکو پر مخ چا
سمې نه دي شمیرلې او نه هم د یوې
سیمې پښتانه د بلې سیمې د تولو تپو
په نومو باندې خبر دي مثلا زه تر څو
میاشتو د مخه پدې نه پوهیدم چې د (
زیموخت) په نامه یوه پښتنې تپه
موجودیت لري پداسې حال کې چې د (
زیموخت ) پښتو کلمه په کندهارې
محاوره کې د ترینګلې سړي او یا د
یوه ستوغ خوند د وګړو تر مینځ
استعمالیږي همداراز عام خلك په
کندهار کې ختیك د یوې حشرې نوم
بولي او پر دې باندې خندا ورځې چې
د ختیکو مشهوره قبیله په دغه نامه
باندې د دوی مخ ته یاده سی له تولو
خبرو سره د برتیانیکا دایره المعارف
لیکونکې د خپلو ماخذونو پر بنا
داسې اټکل کړی دی چې پښتانه د
شپیتو قبیلو څخه جوړ دي چې تاکلې
سیمې یې نیولې دی او د یوه بل سره د
د شمیر په اندازه او اهمیت کې توپیر
لري .

پښتنې تپې او قبیلې سره له هغه چې
په ځینو مواردو کې یې د سیمې د
اشتراك محدودی نمونې اوس هم پیدا
کیدای شي خو د وختې څه لاد کوچی
. ځایې . کلیوالې او ښارې انشعاب
تر جریان لاندې پاشل شوې او تیتې
دي . له دې امله یې پخوانې روابط یا
شوې او یا بیخې له منځه تللې دي .
لاکن د نسبې اړیکو او یا له دې سره
یوځای د کلتوري اشتراك ځینې
نخښې یې د غړو تر منځ د مقابل
اجتماعې احسان زړې خاطرې په تیره
بیا په سیاسې زمینو کې ژوندی ساتې
د تپې په رابطه کې د پښتو نظامې
واحدونو جوړیده زموږ د خلکو اوس
هم په یاد دي او د نن ورځې یو شمیر
قومې ملیشې هم له دې راز او رابطو
څخه نماینده ګې کولای شي .

قوم: د بیلابیلو تپو اتحادیه یا برابرې
چې ګڼ شمیر قبیلې د یوه تولنیز واحد
په کړی کې تر کوم اقتصادي ، کلتوري
او سیاسې اشتراك لاندې راټولوی
کیدای شي چې دقوم یا د ولس په
عمومي نامه باندې یاد شي دغه شان
تولنیز واحد چې په هغه کې تر نسب
پورې بیلابیلې تپې او قبیلې د سیمې
کلتور ، تاریخ اقتصاد او داسې نورو
مشترکاتو په رابطه کې یو ځای کوی د
هغه اجتماعي اقتصادي انکشاف
نتیجه بلل کیږي چې د دولت تر
موسسې پورې ځان رسوي په
تولنپوهنه کې چې دغه راز واحد
اتحادیه بولې یوشمیر غنې نمونې د
پښتنو په تولنیز تاریخ کې ثبت شوې
دي لومړی اصلې نمونه یې هغه ده چې
د یوسفزو د ویش د نظام سره په یوه
وخت کې منځ ته راغلې ده پدې پسې
د کندهار د غلجو تر لارښوونې لاندې
د سیاسې ضرورت او د خپلواکې
داخیستو په هڅه هغه اتحادیه
یادیدای شي چې دپښتنون ملت د
دولتې جوړښت پخه بنا یې کښیښودله
. د همدې اتحادیې په نتیجه کې بیا د
درانیو داسې پیاوړی اتحادیه جوړه
شوه چې د دولت امارتې سطح یې د
امپراطورۍ درجې ته ورسوله د دغې
اتحادیې د شاملو غړو نمونه د
کندهار د احمدشاهې ښار د ناحیو یا
کوڅو د تقسیماتو په نومو کې تر اوسه
لاهم د خولې څخه ندی لویدلی او زه دا
ګڼی د خپلې حافظې له مخې د بامیزو
کوڅې د نورزو د کوڅې د کاکړو د
کوڅې د ساکزو د کوڅې د سیدانو د
کوڅې او د بابړو د کوڅې نومونه د
مثال په توګه دلته یادولای شم . د دغه
شان اتحادیو په جمله کې د ختیځو
پښتنو ختیکو او اپریدو واکمنی هم د
تاریخې محاسبې سمدم عینې مدارك
دي د دې هرې قبیلوی اتحادیې
تاریخې جریان موږ ته د سیمې د
اجتماعي . اقتصادي ژوند د رشد او
متمایلو تاثیراتو ماهیت پوره روښانه
کولای شي .

پای

# خال به د یار په وینو کیږدم

**عزت الله "پېژاند"**

یادونه :
دا لیکنه د هغې غونډې له پاره چې د ګران هیواد د خپلواکۍ د یو اتیایمې کالیزې په ویاړ د کندهار د اطلاعاتو او کلتور په ریاست کې جوړه شوې وه چمتو شویده .

درنـــو برخوالـــو او خوږیدلیـــو هیوادوالو !!

د ســـلامونو او د ویـــاړلي هیـــواد د خپلواکـــۍ د یـــو اتیـــایمې کـــالیزې مبارکي درته ډالۍ کوم .

ګرانـو ! د تـاریخ پـه اوږدو کــې پـر افغـان غیور ملـت د ډیـرو ښامـارانو سترګي سرې شوي غوښتـی یـې دي چې ترخپلې ناولي او زهر جنې سینې لاندې یې راولـی ، خو دې ملـت پـه خپله قوي اسلامي جذبـه او افغـاني میړانـه ډیر ژر غـابښ وربریښولـي دي یوه لـه داسـې پیښو څخـه د ۱۸۷۸ کال د انګریزانو یلوسګری او ۱۹۱۹ د اګست پر ۱۹مـه د هغوی د کمبلې تولیدل دي . په دې لیکنه کې غواړم چې پر همدغه موضوع پـه لنـډ ډول وږغیږم .

افغـان چـارواکي تـر یـوه وړه ځنـډ وروسته یو خل بیاله اروپایي است زیو سره لاس و ګریوان شول او افغانستـان د اروپا په ژورسیاسي اغیز کښیوت . ځرنګه چې افغان چارواکي د اروپا په سیاسي چارو پوره خبر نه وو نـو امیر شیر علی خـان د اروپـایي سیاسـت قربانی شو . او د هغه په واکمنۍ کې د انګلیس یرغلونه پر افغانستان پیل شول .

پـه دویـم پـېر ( د امیر دوسـت محمـد خـان د واکمنۍ پر مـهال ) هـرات او پیښور د خـارجي اړیکـو د موضــوع بنسټیز ټکي و . څکـه چې نوموړي د افغانســـتان تـــاریخي چورلیـــځو ( محوړونه ) بلل کیدل . د امیر دوست محمد خان د واکمنۍ لومړی کلونه له ډیپلوماتیك پلوه ډیر ارام وه نـو کلـه چـې د پنجـاب د سـیك خانـــکري حکومت لـه انګلیـس سره پـه دویـم جنګ کې له امیر دوسـت محمـد خـان څخه د مرستي غوښتنه وکـړل . امیر دریغه ونه کړل نو څه نه څه ارامي رامینځ ته شول . چې پـه همغـه جګړه کې د سیك لښکـر مـات او د ځینـو خایونو پـه شمول پیښور د انګریزانو لاس تـه ورغلـی . د یـارمحمد خـان الکوزي تـر مـړګ وروسـته د فـارس حکومت پر ۱۸۵۶ کال د یوه برید په ترځ کې هرات ونیو . مخکې لـه دې چې امیر دوست محمد خان څه وکړي د هند حکومت د همدغه کال د نومبر پر اوله . له فارس سره د جنګ اعلان وکړ چې پـه همدغـه شپو ورځو کـې ګورنـر جـنرال ( Canning ) ۴۰۰۰ ټوپك او پنځه لکه نغدي کلداري امیر دوست محمد خان ته د فارس د خطر د مخنیـوي پـه اړه ورکـړي او امـیر نظـامي متخصصیـن ومنـل . لـه بـل پلوه هندي حکومت هرات د فارس له منګولو خلاص کړ . خو دا مالومه نـه شـوه چـې ایـا هـرات ازاد او کـه د افغانستـان یـوه برخـه ده . د امـیر دوست محمـد تر مرګ وروسته د هغه زوی شیرعلي خان د یوې غونډې په ترځ کې د هند او برتانیې حکومت ته وویل چې د هغه د پلار په شان دریځ ورسـره غـوره کـړي . خـو د هنـد

حکومت د هغه پر وړتیا او امارت
داډمن نه و د عامو وګړو له امیره
هیله وه چې د دین . وطن . ناموس او
خپلواکۍ لپاره د برتانیې د تیري
مخه ونیسي . کله چې انګریزي
ځواکونه تر پو لوتیر او د خیبر او
پیوړا پر لورو خوځیدل نو امیر
شیرعلي خان د کندهار ځواکمن
سردار امیر افضل خان و د پشت رود
ځواکمن سردار محمد یوسف خان ته
خبر ورکړ چې انګریزي سپایان د کرم
او جلال آباد له لارې افغانستان ته
ننوتي او کیدون ( امکان ) شته چې د
کندهار له لارې هم ننوزي . نو زه
تاسو ته خبر درکوم چې په خپلو سیمو
کې د هغو د ننوتلو مخه مه نیسئ .
وروسته امیر شیرعلي خان سردار
محمد یعقوب خان . له اړتون ( زندان
) څخه خلاص د کابل حکومتي چارې
یې ور په غاړه او خپله د دولتي غړو
. فامیل او یوه ګرځنده پوځ سره د
مزار پر لور وخوځید . دا چې امیر
ولي منځی ( مرکز ) ځال او دننه
مقاومت امر وکړ په دې اړه بیلا بیل
نظرونه وه چې یو دا هم و چې امیر
غوښتل له دې لارې ترکستان ته ولاړ
شي او هلته د روسیې په مرسته په
اروپا کې یو کنفرانس جوړ او په هغه
کې غوښتنه وکړي چې هغوی خپل
پوځونه له افغانستانه وباسي ،
وروسته د امیر دومره پته ولګیدل
چې د ۱۸۷۹ کال د فروري پر
دولسمه مړ شو . د امیر تر مرګ
وروسته په هیواد کې نسبتا ناارامي
وه . په داسې وخت کې چې لیتن
انګلیسي پوځونه د افغانستان پرېولو
وروړول . جوخت په یوه اعلامیه کې
وویل چې د برتانوي هند حکومت د
افغانستان له وګړو سره دښمني نه
لري غواړي چې لومړی زموږ اړیکی
له افغانستان سره د داسې شرایطو پر
بنسټ وي چې د دریو مخو په لړلو سره
د جنګ مخنیوی وشي . یانې د
شیرعلي خان مجازات . په پولو کې
تولمهالي ( دائمي ) سمونوني (
اصلاحات ) او په هغو تولو سیمو کې
چې د پولو اوامو تر مینځ پرتې دي د
سیاسي نفوذ ځای پرځای کول . دویم
غواړم چې په چټکۍ خپل کاروانه پیل
کړم چې د کیدونې جنګ مخه ونیول
شي . د فروري له پای څخه د اپریل تر
وروستیو د برتانوي هندي حکومت او
امیر یعقوب خان تر مینځ لیکونه
واستول راواستول شول . لومړی
حکومت هغه چې د ګندمک په تړون
کې راغلي وو امیر ته وړاندې ، او
امیر پرته له څو سیمونو ټول هغه
ومنل . وروسته امیر محمد یعقوب
خان د خپل حکومت په دستګاه کې
څینې بدلونونه راوستل چې په دې
ترځ کې یې هغه سرداران او د ده
داکاز امن چې ډېر باور یې پر لرلی په
مناسبو دولتي دندو وګومارل ،
سردار شیرعلي خان د کندهار والي .
سردار محمد حسن خان د جلال اباد
والي . سردار محمد اصف خان د
لغمان والي . سردار محمد یوسف
خان د پشترود مشر او سردار محمد
طاهر خان د کلات مشر وټاکل شول .
د ۱۸۷۹ کال د جولای پر ۲۴ مه د
برتانیې سیاسي پلاوی د کوګناري
یاکیوناري په مشرۍ د ۲۵ پیاده او
۵۰ سپرو سره د لوګر له لارې د
شاندارو مراسمو په ترځ کې په کابل
ننوت او هلته کیوناري د برتانیې
سفیر " " وټاکل شو .
له دې نه یوه اوونۍ وروسته شپږ
پیاده قطعې له هرات څخه کابل ته
ورسیدلې البته نوموړي له عسکرو او
بیلابیلو سیمو له وګروڅخه جوړې او
کابل ته د ننوتلو سره سم یې توري له
تیکو وکښلې اولاړیون یا مظاهره یې
پیل کړه او د انګریزانو پر ضد یې
شعارونه ورکول . د شعارونو تر
څنګ سپاه سالار داود شاه خان ته یې
هم ښکنځل کول . امیر په چټکۍ
تولو عسکرو ته معاشونه ورکړل او د
څلوېښتو ورځو لپاره یې رخصت کړل
. خو هغوی هیڅکله بیرته رانه غلل .
امیر د څینو ولایتونو د سېرپه تګل
کې څکه شو چې رامینځ ته شوې
اړودوړ ارام کړي . کیوناري له هغه د
ملګرتیا غوښتنه وکړل . خو امیر ونه
منل . څکه چې دا د هغه لپاره د شرم
خبره وه چې له یوه تیټ پوړي خارجي
افسر سره ولیدل شي .
د ۱۲۹۴ کال د روژې پر لسمه د
سپاه سالار داود شاه خان او عسکرو
تر مینځ د معاش پر سر اخ و ډب
رامینځ ته شو چې په دې ترځ کې یوه
عسکر سخته ګوتځننه وکړل چې
لومړی به کیوناري او بیا به امیر
محمد یعقوب خان وژني . ټولو
عسکر د څینو منصبدارانو په شمول
د کیوناري پر سفارت برید وکړ او
هغه یې تپي کړي .
امیر د چپاو د ارامې هڅه وکړله خو
بریالی نه شو او په پای کې یې دافسر
سردار یحیی خان په لاس قران او
مشوم زوی د چپاو کونکو مخته ور
ولیږل او هغه ته یې وویل چې زما له

خوا ورته ووایه چې د خدای "ج" او دغه قران لپاره له چپاوځخه لاس واخلی . تاسي چې په خپل هیواد کې کافران نه منی زه یې بیرته باسم ...

لیتن د کیوناری د مرګ د خبر له اوریدو لښکر ته امر وکړ چې پر کابل یرغل وکړي او رابرتسی هم څه د پاسه له (۷۰۰۰) تنو څخه جوړ وسلوال پوځ پر کابل ور مرچ کړ . د کابل تر یرغل او چهار اسیاب تر جنګ وروسته د انګریزانو په نوښت یوه غونډه جوړه شوه . په نوموړی غونډه کې امیر ته بلند وکړل شوي وه خو هغه دا ونه منل او تر غونډي یوه ورځ وروسته (د اکتوبر د دولسم سهار پر شپږو بجو) امیر د رابرتس کار ځای ته ورغلي او خپله استعفی یې کښېښودل او زیاته یې کړل : (( څوك چې خوښ خوشاله د کابل مشر وي ژر به د انګلیس په پنډغالی کې بنوان شي . )) د رابرتس په وینا امیر د خپلی استعفی لامل داسی څرګند کړ : "له دي امله چې زه د انګریز پنډ غالی ته راغم خلګ مې کافر بولی . ان خپل پیاده ګان کرکه راڅخه لري . زه پوهیږم چې نور د هیچا نه یم په کار " د برتانیې حکومت اعلان وکړ چې ټول افغان سرداران دي امنیت تینګ او د ستونزو د حل لپاره دي له هغوی سره وګوري . هغه هڅه وکړه چې له عامه وګړو سره سم چلند وکړی . د هغوی مذهب او کلتور ته په درنه سترګه وګوري . څه موده وروسته مستوفی حبیب الله . سردار یحیی خان وزیرشاه محمد خان او سردار زکریا خان له دی امله اړتون ته ولیږل شول چې له وګړو څخه یې د انګریز پر ضد کار اخیستی . په همدغه شپو ورځو کې د بالاحصار په لس کیلومتری کې نظامي حکومت اعلان او منیجرجیمز هلز د نظامي والی په توګه وګمارل شو . یوه اوونی وروسته اعلامیه خپره شوه چې که له هر چاسره وسله ونیول شول نو سزایې اعدام او همدارنګه هر چا که د هغه چا په اړه چې پر سفارت یې برید کړیدی مالومات ورکړل پنځوس کلداری انعام ورکول کیږی . خو افغانان د دي ټولو پر وړاندی پوره بې تفاوته پاته شول او وروسته رابرتس یوه خو نړۍ او ویرونکی فضا رامینځ ته کړل او د سپتمبر پر ۲۲ مه لیتنی رابرتسی ته وویل چې د کیوناري غچ باید له افغان ملت څخه واخستل شي . رابرتسی هم په ډیره بې پروایي او بی شرمي بډی راونغښتل او ډیر بی ګناه افغانان یې ووژل . که له چا سره چاقو پیدا شوی وای اعدام کیدی او هم زیات شمیر کسان په دی تور غرغره شول چې ګوا کې د دوی پرضد یې پاڅون پیل کړی و . لنډه دا چې په څو شپو کې ۹۷ تنه په قلم کښلی په شهادت ورسیدل ، البته دا شمیره د هغو کسانو له شمیرې څخه بیله ده چې رښتیا یې د دوی پر ضد پاڅون کړي و .

لیتن د کیوناري تر مرګ وروسته د نورو چارو تر سره کولو سره سره یو چار (کار) د افغانستان ویشنه (تجزیه) بللی وه نو ځکه ابرتس د اکتوبر پر ۲۲مه هند ته داسي لیك ولیږلی . " اوس بل څوك دلته سیاسی ډله نه لري او نه بل داسي څوك وینم چې یو مینځی (مرکزی) حکومت دي جوړ کړي . اوس نو د افغانستان د ویشني وار دي "

په دې اړه د هند مرستیال واکمن وایسرا (بارون لیتن) ته دوې لاري پرتی وې :

لومړی : افغانستان پر برتانیه پوري تړل .

دویم : له هغه یو غښتلی او خپلواك ملکری جوړول

دریم : هغه پر څو برخو ویشل . لومړی لاره ډیره خطرناکه ځکه وه چې یو خوله مالی پلوه د دغه غرني هیواد نیول ډیری پانګی ته اړتیا لرل او بل دا چې دا طرحه د لندن هم نه وه خوښه .

د دویمی لاري د پلی کولو لپاره یو داسی څواکمن واکمن ته اړتیا وه چې ټول افغان مشران په ځان پسي روان کړي . ستونزه دا وه چې یو خو داسي واکمن نه و او بل وایسرا دغه واکمن ګرد سره نه غوښتی ځکه د ځان غوښتنی او بې امری کیدون یې زیات و . نو دریمه لاره غوره او رابرتس یې په څواب کې وکښل : " زه په دې توګه په دې ډاډه یم چې زموږ د تلپاتو ګټو لپاره د افغانستان وروستی چاره د هغه د جوړ کړي سیاسي یووالي ماتول او همغه ویشنه ده . "

لیتن په دي لټه کې و چې کابل او کندهار باید دوه بیلابیل دولتونه شي . یو له بله خپلواك او دواړه تر برتانوي پالني لاندي راشي . خو هرات په څو اړنو ایران ته ورکړل شي . ده ۱۸۸۰ زیږ دیز کال د جنوری پر اوومه پر کرین بروك د خپل یوه پټ لیك په ترځ کې تینګار وکړ چې هرات

او سیستان دي ایران ته وسپارل شي او په کابل او کندهار کې دې د انګریزانو تر خارني لاندې دوه بیلابیل دولتونه جوړ شي. پښین، سیبي او کورمه دي تیغ تر بره تړلي وال لاندې راشي. د همدغه وسني په ترځ کې په کابل او غزني کې د انګریزانو پر خلاف ملي پاڅونونه واخیست او سخت مرګ ژوبلي رامنځ ته شولي. له دې سره انګلیس ځنمجن شو او د کابل د امنیت له کډون یې څه د پاسه ۱۰۰ تنه په دار کړل

د لیتن اره موخه د کندهار بیلتون و چې د ستیوارت په مشرۍ د انګریزانو د اوونس زره کسیز پوځ د ۱۸۷۸ کال د نومبر پر ۱۲مه د کندهار د پښین ولسوالۍ ته ننوت او ښار تر یوې نیمې میاشتې سقوط وکړ. وروسته د کندهار د بیلیدو پلان د ۱۸۸۰ د اپریل پر لومړۍ نیټه په عملي توګه پیل او شیرعلي خان د احمد خان زوی د کندهار او وریوري سیمو والي وټاکل شو وروسته اعلان وشو چې کندهار د تل لپاره له کابله بیل شو

د کابل د پراختیا و ترځنګ په بیل شوي کندهار کې عام ځنبم انګریزان په سختو امنیتي سرخوږیو کې رانغښتي وو د بیلګي په توګه په ښکارپور بازار کې د قاضي دانې تر څنګ د یوه بوټ جوړونکي له خوا پرسینټ جان درندې برید. د یو بل خوان له خوا د څو انګریزي عسکرو په چاړه وهل. د توپخانې د یوه افسر وژل او بیا د هغه توته. توته کول او د پنځو طالبانو له خوا د انګریزانو د سپورټ په میدان کې پر پوځیانو برید وژنه او داسې نور د یادونې وړ دي.

له دې څخه وروسته د خلکو احساسات ورځ په ورځ پاریدل او د انګریزانو پر ضد یې پاڅونونه پیل کړل. د کابل مخفي نماینده ګانو د ټینګ افغانستان خلک دې ته وپارول چې د انګریزانو پر ضد وسلې واخلي. خو داسې هم ویل کیدل چې امیر محمد یعقوب خان د مومندو او اپریدیو څخه د لیک له لارې وغوښتل چې د انګریزانو پر وړاندې ودریږي د اکتوبر پر ۱۶مه یرغلګرو ته دا څرګنده شوه چې د افغانستان ډیر وګړي د انګلیس سخت سري دښمنان دي خو په دې شدل فکر یې د ژره تسلي کول چې د افغانانو احساسات به د وخت په تیریدو سره ارام شي

د نومبر په منځنیو ورځو کې ملامشک عالم په زرګونه تنه خلک د انګریزانو سره د جهاد لپاره راغونډ کړل چې په دې ترځ کې د وردګو، کوهستان، تګاب او نجراب خلکو هم د جهاد جنډې پورته او دامر په هیله شول وروسته دا ولولو د ژوب د ککرو په زړو کې هم غزونې وکړې او ۶۰۰۰ جنګي زلمیانو د کندهار له والي سره ژمنه وکړه چې د انګریزانو په وړاندې جنګ ته چمتو دي. د دې په پای کې د انګریزانو او افغانانو تر منځ د دسمبر له ۱۰ څخه تر ۱۵ پورې درنده لویه جګړه ونښتل چې په تاریخ کې یې ډیر لږ ساری لیدل شوي دي.

همدا دی نه وي چې افغاني میرمنو هم د زلمیو په شانه یادونې وړ رول لوبولی او د دښمن په راپرځولو کې یې لویه ونډه اخیستې ده. هغه میرمني چې د حجاب پوره پاملرنه يې په داسې حساسو پېښو کې یې دا کړې ماته کړیده. د ریاضی د وینا له مخې د اسمايي غره په جګړه کې څه د پاسه څلورو سوو میرمنو برخه اخیستي او زیاتو يې غازیانو ته اوبه ورورلې چې د هغوی له ډلي ۸۳ تنې په شهادت ورسیدلي. باید یادونه وشي چې د اونچي باغوانان. چهار اسیاب او چهلستون په کلیو کې د دسمبر د ۱۱ مې په جنګ کې هم افغاني میرمنو د باغو او کورونو له بامونو څخه پر انګریزي پوځونو د کوزو، ډبرو او کاشنانو برید وکړ او سخت يې وځپل چې له هغې نیټې په ( غوزي ادي ) پیژندل شویدي

د ریاضي په وینا (( تر دې وروسته به د انګلیس پوځیان د کابل په کوڅو او بازارو کې ګرځیدل. کله چې به یې ځنورې د اسانو ځښتنان لیدل نیول به یې او په شیرپور کې به یې وژل )) برسیره پر دې هغو د مجاهدینو کلي چور او باغونه او کښتونه یې وړلوپه کړل. خو دا وحشي او خونړي پېر ( دوره ) دومره اوږده نه وه. د دسمبر پر ۲۶ مه له محمد جان خان. ملامشك عالم. سمندر خان. میربچه خان او سردار محمد طاهرخان پرته تولو هغو کسانو ته چې د انګلیس پر وړاندې جنګیدل عمومي بښنه ( عفوه ) اعلان شول. د نظمي حکومت پر ځای ملکي حکومت د سردار ولي محمد خان په مشرۍ رامنځ ته شو. حالت د سمون پر لور ګام واخیست. انګلیس د کابل د اهمیت وړ یا په بله وینا ستراتیجیکو سیمو لکه سیاه

سنګ . شیردروازه ، بی بی مهرو او داسې نورو کې سرکونه جوړ او د ودانیو جوړولو کارونه يې بنایانو ته په اجاره ورکړل .

د وګړو بې روزګاري او دربدري پای ته ورسیدل . تجارت پیل او دول . دول مارکیټونه جوړ شول هیسیمن لیکي : " کابلي تجاران هیڅکله داسې نه وه ماړه شوي او نه د کابل وګړو په تجارتي مارکیټونو او بازارانو کې دومره د پیسو ډیروالی لیدلی و . دومره ډیروالي چې هندوان لاګو ته په غاښ شول . خو باید وویل شي چې که څه هم انګریزانو هڅه کول چې دا حالات په ټول هیواد کې رامینځ ته شي د کابل ولایتونو ته هم ونه رسیدل . او پرته له کابله د ټولو سیمو خلګو د پخوا په شان انګلیس ته غاښونه چیچل .

ملي پاڅون دا وج په حال کې و چې دوې پرمختیاوې رامینځ شوې . یوه دا چې په لندن کې د ۱۸۸۰ کال د اپریل په پای کې د محافظه کاری ډلی په زیان او د لیبرال هغه په ګټه انتخابات پای ته ورسیدل چې له افغانستان څخه يې د خپلو وتلو ژمنه وکړه او بل دا چې د هیواد په شمال او جنوب کې د سلطنتي کول ( تهول ) دوه ځوانان راپیدا شول چې مخ پر کابل یون په حال کې وو . سردار عبدالرحمن خان د محمد افضل خان زوی له تاشکنده او سردار محمد ایوب خان د امیر شیرعلی خان زوی د هرات له لوري راوخوځیدل .

ایوب خان د ۱۸۸۰ کال په لومړیو کې دوه درې ځله عبدالرحمن خان ته د جهاد بلنه ورکړل خو وروسته وایسرا د ستیوراټ په مرسته عبدالرحمن خان د ۱۸۸۰ کال د جولای پر ۲۲مه د کابل او اړوندو سیمو واکمن اعلان کړ . د همدغه کال د جولای په میاشت کې خبر راغلي چې ایوب خان له ستر پوځ سره واشیر ته راورسیدل . او په همدغه ورځ نوموړی له خپل پوځ سره د کندهار د میوند پراخی دښتې ته راغلی د انګریزانو او ایوبخان پوځونه یوه اووني یو بل ته مخامخ پراته او د جولای پر ۲۷مه دومره سخت جنګ ونښت چې په اسیا کې يې د انګریزانو ملاماته کړل او د افغانستان او کندهار د بیرته د پیوستون لامل شو او پیغلو هم دی ستري جګړې ته ور ودانګل او پیغلي زمري ( ملالی ) له یوه تپي افغان څخه توره واخیستل خپل پوړني يې د جنډې غوندي وریوري وتاړه په افغاني او پښتني غرور يې د غازیانو وینی په دې لندۍ په رګو کې وخوټولی .

**که په میوند کې شهید نه شوې**
**خدای ږولالیه بی ننګی ته دې ساتینه**
**خال به د یار په وینو کیږدم**
**چې شنکي باغ کې ګل ګلاب وشرموینه**

د انګریزي تاریخ لیکونکو په وینا په دې جګړه کې ۱۳۰۰ انګریزي پوځیان تبا او خورا زیات توپونه او وسلې يې هم ولجه شوې خو په ۷۰۰ افغانی شهیدانو هم د میوند دښته ونازیدل .

له پلان سره سم د وایسرا او امیر تر مینځ د کندهار په اړه د نومبر له اولی څخه د لیکونو لیږل پیل شول چې د دې کار په پایله کې د ۱۸۸۱ کال د اپریل پر ۲۷مه د ۲۱ توپونو په سلامی د برتانیې بیرغ راکښته . ټول برتانوي پوځونه له کندهاره ووتل او کندهار ... امیر عبدالرحمن خان ... وسپارل ... دا چې د کندهار جینې برخی لکه سیبی . کوټه . چاغی . ژوب . پښین او چمن له انګریزانو سره پاتی شول دا مانا لري چې هغوی هم کندهار په خپله واکمنی کې لاندی کړ .

... دې وروسته افغانستان د انګریزانو له پوځی جنګه بیغمه خوله بده مرغه د هغوی په سیاسي جنګ کې راښکیل شو . په پایله کې پر ۱۸۹۳ کال د ډیورند افغان دښمنانه ترون په لاسلیك سره د انګریزانو د زړه براس ووت او افغانستان د دریم ځل لپاره وسکنل شو او د ۱۹۱۹ کال د اګست پر ۱۹مه یاني پوره ۸۱ کاله وړاندی ګران هیواد افغانستان د نړۍ له یوه ستر ښامار ( برتانیې ) څخه بشپړ خپلواك شو .

د یو . خپلواك . ودان او سوکاله افغانستان په هیله

**اخځلیک :**


۱ جنګ دوم افغان - انګلیس . کاکړ پوهاند ډاکټر محمد حسن . د افغانستان ملی محپاذ . پیښور . ۱۳۶۷ل

۲ افغانستان په شلمه پېړۍ کې د پوهنیز سمینار د لیکونو ټولګه . د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه . جرمنی د کولن ښار ۱۳۷۸ ل

# دنیوي مصلحت که د شرعي حکم اجرا؟

مولوی نصرالله "کاکازاده

له کومې ورځې چې عالیقدر امیرالمؤمنین د افغانستان د اسلامي امارت د سترې محکمې او د هیواد د جیدو علماو کرامو د فتوا له مخې په بامیانو کې د بودا د بتانو په ګډون د هر ډول بتانو د ماتولو فرمان صادر کړیدی له هماغه ورځې راپدیخوا طالبان د کفارو لخوا په ډول ډول نوموتو نومول کیږي. څوك یې کلتوري تروریستان بولي او څوك یې د زړو او تاریخي اثارو دښمنان او ځینې نور یې بیا د ارتجاعي مفکورې خاوندان بولي.

د کفارو لخوا که طالبانو ته هر ډول پیغورونه او طعنې ورکول کیږي له هغو نه خو هیڅ ګیله نشته ځکه هغوی د مسلمانانو قسم خوړلي او ازلي دښمنان دي. مګر افسوس د هغو مسلمانانو په حال باندې چې هغوی هم د کفارو د پروپاګنډې تر اغیز لاندې راغلي او د هغوی اتڼ یې لاهم ګرم کړیدی. له دغو مسلمانانو سره د بتانو د نه ماتولو په اړه هیڅ شرعي دلیل هم نشته. د دوی لوی دلیل یوازې مصلحت دی. دوی عقیده لري چې په دې وخت کې د بتانو ماتول د نړۍ د مسلمانانو لپاره تاواني ثابتیدلای شي. مګر ځینې نور مسلمانان بیا لکه څنګه چې په دې اړوند پوره ښه معلومات نه لري ځکه نو هغوی هم د مصلحت له نامه نه استفاده کوي او د اسلامي امارت په دغه اقدام باندې د ناخوښۍ څرګندونه کوي او په دې ډول په طالبانو باندې ډول ډول طعن او تشنیع کوي.

موږ به په خپله دغه لیکنه کې لومړی د بتانو د ماتولو مشروعیت ذکر کړو او وروسته به په دې باندې رڼا واچوو چې آیا د نیوي مصلحت د شرعي حکم د اجرا لپاره مانع واقع کیدای شي که څنګه؟

**لومړی د بتانو د ماتولو مشروعیت:** لوی خدای "ج" په قران کریم په سوره الانبیاء کې د حضرت ابراهیم علیه السلام کیسه خورا په تفصیل سره ذکر کړیده. په تفاسیرو کې د دې کیسې نور تفسیر هم بیان شویدی او هغه داسې چې حضرت ابراهیم "ع" د الله تعالی "ج" له لوري نبي وګومارل شو د هغه پلار اذر او د هغه ټول قوم به د بتانو عبادت کاوه حضرت ابراهیم "ع" چې به هغوی هر څومره توحید ته رابلل مګر هغوی به په خواب کې ورته ویل چې موږ د خپلو پلرونو او نیکونو دین نه شو ایله کولای. دغو مشرکینو به په کال کې یوه ورځ د اختر د ورځې په بڼه لمانځله او میلې او جشنونه به یې پکې کول. یو وخت د دوی د اختر ورځ رانژدې شوه مشرکین حضرت ابراهیم "ع" ته راغلل او هغه ته یې هم د اختر په میلو کې د ګډون بلنه ورکړه حضرت ابراهیم "ع "ناروغه" وکړه او ورته ویې فرمایل چې زه ناروغ یم او نه شم تللای. لنډه دا چې کله مشرکین ولاړل نو حضرت ابراهیم "ع" تبر راواخیست او د مشرکینو نږدې اویا بتان یې پرې ټوټه ټوټه کړل یوازې یو لوی بت یې پکې سالم پریښود او تبر یې د هغه په اوږه ورکیښود. د دغه بت په پریښودلو کې د ابراهیم "ع" دکوم دنیوي مصلحت غرض نه وو او نه هم ورته کفارو د ملیونونو ډالرو او پونډونو وړاندیز کړی وو بلکې غرض یې دا و چې کله کفار راستانه شي او نور بتان مات وویني نو هغوی به ابراهیم "ع "ته رجوع وکړي" دا په هغه صورت کې که چېرې په آیت کریمه کې د لعلهم الیه په جمله کې

د ( الیه ) ضمیر حضرت ابراهیم " ع " ته راجع شي کما فی تفسیرالقرطبی نو کله چې دوی دغه کار وکړی نو حضرت ابراهیم " ع " به ورته وفرمایي چې ورشئ او له هماغه غټ بت نه چې تاسی یې خدای بولی د دې څه پوښتنه وکړی . ترڅو هغه تاسی ته څواب درکاندی چې دغه بتان چا مات کړیدی ؟ کله چې هغوی دغه بت ته ورشی او په دې اړه پوښتنه ترې وکړی نو د بت د خواب د نه ورکولو پر بنسټ به هغوی حضرت ابراهیم " ع " ته وشرمیږی او په دې ډول به د حضرت ابراهیم " ع " حجت چې ګواکی دغه بتان هسی خوشی تیږی دی تام او پوره شي . په ځانګړی ډول د حضرت ابراهیم " ع " له لوری د بتانو د ماتولو کیسه په دغه آیت شریفه کې پدی ډول شویده

فجعلهم جذا ذا الاکبیرا لهم . سوره الانبیاء ایت ۵۸

ژباړه : " پس وګرځول ( حضرت ابراهیم علیه السلام ) دغه بتان ټوټه ټوټه مګر پرته له لوی د دوی نه "
یعنی غټ بت یې مات نکړ . دا خو په قرانکریم کې د بتانو ماتولو هغه ذکر راغلی چې د بتانو د ماتولو جواز او مشروعیت ترې ثابت شو . بله دا چې د ابراهیم " ع " په لاس د ماتو شویو بتانو هم د سلګونو کلونو قدامت درلود یعنی دا چې ډیر پخوانی او دسلګونو کلونو زاړه آثار وو .
همدا راز په احادیثو کې هم د بتانو د ماتولو ذکر راغلی دی . څکه نو کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مکه فتح کړه هغه مهال په کعبه او دهغې په شا وخواکې ۳۶۰ بتان موجود وو چې هغه هم ډیر پخوانی وو . مګر ځنګه چې د الهی امر د اجرا په وړاندی هیڅ شي هم مدنع نه شي ګرځیدای . نو همدغه وو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ټول مات کړل . د رسول الله صلی الله علیه وسلم په لاس د کعبې د بتانو د ماتولو پیښه په حدیث شریف کې په دې ډول راغلـــــــــــــــی ده :
عن عبدالله رضی الله عنه : قال " دخل النبی صلی الله علیه وسلم مکه یوم الفتح و حول البیت ستون و ثلث مایه نصب فجعل یطعنها بعود فی یده و یقول : جا الحق و زهق الباطل . جا الحق و مایبدی الباطل و مایعید ( ۱ ) رواه بخاری .
ژباړه : له حضرت عبدالله رضی الله عنه نه روایت دی : فرمایی : چې داخل شو رسول الله صلی الله علیه وسلم مکې ته د فتحی په ورځ په داسې حال کې چې د بیت الله شاوخوا ۳۶۰ بتان موجود وو . نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپل هغه لرګی په وسیله چې په لاس کې یې وو د بتانو په ماتولو پیل وکړ او ( دغه مهال به یې ) داسی فرمایل :
" حق راغی او باطل له منځه ولاړ . حق راغی او باطل و لاړ بیا هیڅکله هم بیرته نه راګرځی " له پورتنی حدیث نه دا په ډاګه شوه چې د بتانو د ماتولو ابراهیمی سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم هم راژوندی کړیدی . نو له دې څخه دا هم په زباد ( ثبوت ) ورسیده چې د بتانو ماتول مستحسن او مشروع فعل دی .

**یو اعتراض :**

ځینی خلک وایي چې یوازی د مکې د بتانو ماتول د رسول الله صلی الله علیه وسلم ځانګړتیا وه . ځکه نو د بتانو ماتول هم ( مطلقا ) تر رسول الله صلی الله علیه وسلم پوری خاص دی .

*ځواب :*

دا خبره چې یوازی د مکې د بتانو ماتول په رسول الله صلی الله علیه وسلم پوری خاص وو . سراسر غلطه ده . ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له مکې پرته نورو ځایونو ته هم د بتانو د ماتولو لپاره لښکری لیږلی وی . که چیری دا خبره سمه وای چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یوازی د مکې د بتانو په ماتولو مامور وو . نو بیا یې نورو سیمو ته ولی د دې غرض لپاره لښکری استولی ؟ حافظ ابن کثیر " رح " په دې اړه داسي فرمایي :
لما جا الاسلام جهز رسول الله صلی الله علیه وسلم الی کل بیت من هذه سرایا تخربه والی تلك الاصنام من کسرها حتی لم یبق للکعبه ما یضامیها و عبدالله وحده لاشریکه له ( ۲ ) .
ژباړه : " کله چې اسلام راغی نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغو کورونو چې بتان ولری دورانولو او په هغو کې دشته بتانو د ماتولو لپاره لښکری تیاری کړی . همدا راز یې

داسي لښکري هم تیاری کړی چې هغوی به بتان ماتول او په کعبه کې بې هیڅ داسي شی نه پریښود چې هغه ( په عبادت کې ) له کعبې سره مشابهت ( ورته والی ) ولری "
همداراز علامه ابن کثیر د خپل کتاب البدایه والنهایه په دوهم ټوک کې د " ذکر اخبار الغریبه " تر عنوان لاندی د ډیرو داسي صحابه کرامو پیښې بیان کړیدی چې پخوا به یې د بتانو عبادت کاوه مګر په اسلام باندی تر مشرف کیدو وروسته یې پخپل لاس دغه بتان مات کړیدی او په دې ډول د لوی خدای " ج " د وحدانیت قایل شویدی چې موږ د ګرانو لوستونکو د لاخبرتیا لپاره یوازی د حضرت عمرو بن مره الجهني رضی الله عنه واقعه د بیلګی په ډول لیکو :
عمرو بن مره الجهني رضی الله عنه فرمایي چې زه د جاهلیت په زمان کې د خپلی قبیلې له نورو خلکو سره د حج د ادا کولو په نیت مکې ته روان شوم د حج له ادا کولو وروسته بیرته د خپل ښار پخوا روان وو چې کله هلته ورسیدو یو سړی خبر راکړ چې د احمد په نامه باندی یو سړی مبعوث شویدی . زه هم سم له لاسه د احمد " په خدمت کې حاضر شوم او خپله کیسه مې ورته تیره کړه نوموړی په خواب کې داسي راته وفرمایل .
یـ عمرو بن مره انی المرسل الی العباد کافه وادعو هم الی الاسلام و امر هم بحقن الدما ، وصله الارحام ، و عباده الله و رفض الاصنام ..... الخ ( ۳ )
ژباړه : ای عمرو بن مره ! زه د الله لخوا ټولو بندګانو ته رالیږلی شوی یم او زه هغوی اسلام ته رابولم ، دیوه او بل د وینو ساتلو وصله رحمی ، د خدای " ج " د عبادت او د بتانو د ماتولو امر ورته کوم " له پورتنی عبارت څخه معلومه شوه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم پخپله د بتانو د ماتولو امر فرمایلی دی همداراز عمرو بن مره رضی الله عنه وراندی وایي:
و کان لنا صنم و کان ابی سادنا له فتمت الله فکسرته ثم لحقت اللنبی صلی الله علیه وسلم ( ۴ )
ژباړه : " او زموږ یو بت وو چې زموږ پلار به یې ډیره بزرګۍ بیانوله . نو زه ورغلم . هغه مې مات کړ او بیا له نبی صلی الله علیه وسلم سره یو ځای شوم ( یعنی اسلام مې راوړ )
همداراز علامه ابن کثیر احمدالله علیه د ابراهیم علیه اسلام په کیسه کې فرمایي :
" عرض لهم فی الکلام حتی توصل الی مقصوده من امانه اضامهم و نصره دین الله الحق فی بطلان ماهم علیه من عباده الاصنام اللستی تستحق ان تکسرو ان تهان غایه الاهانه ( ۵ )
ژباړه : " حضرت ابراهیم علیه السلام توریه له همدې امله وړاندی کړه ( یعنی د اختر میلې ته له تګ نه یې معذرت وغوښت ( تر څو خپل مقصود ته ورسیږی چې هغه د بتانو سپکاوی دی او په دې ډول د هغو شیانو چې مشرکین یې ترسره کوی چې هغه د بتانو عبادت دی . په باطلولو سره د برحق الهی دین سره مرسته وکړی او دغه بتان له یوه مخه د ماتلو او سخت سپکاوی وړشیان دی او باید چې سخت سپکاوی یې وشي "
همداراز د بتانو عبادت کول هم ډیره لویه ګناه او خورا ستر منکر دی څنګه چې د بامیانو د بتانو په ګډون په هیواد کې د موجودو نورو بتانو د تعظیم او آن د عبادت له پاره کفار له ډیره لری راتلل او دلته به ډیرو منکراتو مرتکبین ګرځیدل خکه نو د هغو له منځه وړل نور هم ضروري شوي وو په دې اړه په حدیث شریف کې داسي راغلي دي
عن طارق بن شهاب رضی الله عنه قال : قال سید رضی الله عنه : سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم : من رامی منکم منکرا فلیغیر بیده فان لم یستطع فبلسانه فان له یستطع فبقلبه و ذلک اضعف الایمان " رواه النسائی " ۶ )
ژباړه : " طارق بن شهاب رضی الله عنه فرمایي : چې ابوسعید خدری رضی الله عنه فرمایي چې ما د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دي چې فرمایلی یې دي : له تاسي نه چې هر څوك کوم منکر ( ناوړه کار ) ووینی نو په لاس سره دي دفع کړی او که یې د هغه توان نه درلودنو په خوله دي دفع کړي او که د هغه توان یې هم نه درلود نو په زړه کې دي بد وایسوی . او دغه سړی ( په زړه کې بدایسونکي ) تر ټولو د کمزور ایمان

وال دي ." نو کله چې د بتانو ماتول او له منځه وړل په قرانکريم نبوي احاديثو او د صحابه کرامو په اثارو باندې ثابت شول نو هيڅ ته هم جايز نه ده چې پر طالبانو د اسلامي امارت باندې د بتانو د ماتولو له امله اعتراض او انتقاد وکړي.

دوهم: ايا د نيوي مصلحت د شرعي حکم د اجرا لپاره مانع واقع کيداي شي کنه؟

دا خبره خو بيخي ښکاره ده چې قراني احکام او شرعي اصول دومره محکم دي چې هيڅ شي هم د هغوي مخنيوي نه شي کولای او دا چې د نيوي مصلحت د شرعي حکم په مقابل کې هيڅ حيثيت نه لري بلکې د دوي دواړو د تقابل په وخت کې د شرعي حکم اجرا کول پخپله لوي مصلحت ګڼل کيږي. په بخاري شريف کې په يوه حديث کې راغلي دي چې د عکل يا عرينه قبيلې يو څو کسان مديني منورې ته راغلل، د مديني منورې هوا په هغوي بده ولګيده او ناروغه شول. رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې تاسي ولاړشي او زموږ د اوښانو بولې او شيدې وڅښئ نو تاسي به روغ شئ. دغو نفرو چې دا کار وکړ نو روغ رمټ شول نو يې د رسول الله صلی الله عليه وسلم اوښان وتښتول او اوښبه يې په شهادت ورساوه. رسول الله صلی الله عليه وسلم صحابه کرام پسي واستول هغه وې چې صحابه وې دغه کسان لاس ترلي د رسول الله صلی الله عليه وسلم مخې ته حاضر کړل. رسول الله صلی الله عليه وسلم د هغوي لاسونه او پښې ورپرې کړل سترګې يې ور ړندې کړې او سره لمرته يې وغورځول تر څو چې ساني وختله او مړه شول. دا پښه هغه وخت منځ ته راغلې وه چې مثله جايزه وه. اوس نده جايزه) نو دلته هم مصلحت په دې کې وو چې دوي بايد دومره ژر نه واي وژل شوي ځکه هغه وخت ډير مسلمانان په داسي هيوادونو کې اوسيدل چې هلته د کفارو غلبه وه او عين ممکنه وه چې د دې پيښې له امله دې کفارو له مسلمانانو سره بد وضعيت پيل کړي واي خو رسول الله صلی الله عليه وسلم د دې مصلحت هيڅ پروا ونکړه او د هغه وخت شرعي حکم يې ډير ژر پر ځای کړ. له دې نه معلومه شوه چې د نيوي مصلحت د شرعي حکم د اجرا په مقابل کې مانع نه شي واقع کيداي. او که چيرې موږ مسلمانانو په دومره وړو وړو مصلحتونو پسي وګرځو نو عين ممکنه ده چې يو څو کاله ورسته دې هندوان له موږ نه غوښتنه وکړي چې د ګنې ګوړې په ځايونو او دغم او خوښۍ د مراسمو په وخت کې غواوې او غوايان مه حلالوئ. ځکه دا زموږ خدايان دي (نعوذ بالله) او د دې په حلالو سره زموږ سپکاوي راځي. نو ايا هلته به هم موږ مصلحت ته ګورو او هغه شيان چې الله تعالی موږ ته حلال کړيدي د نيوي مصلحت له امله په لوي لاس په ځان حرام وې؟ نو له دې نه په ډاګه شوه چې شرعي حکم د تقديم حق لري. بلکه دا چې د بتانو په ماتولو کې د ځنډ له امله چې اسلامي امارت د سلوغوايانو د صدقې کوم اعلان کړيدی نو د دې مثالونه هم په شريعت مطهره کې خورا ډير دي. مثلا د حج په وخت کې له چا څخه د کوم محظور شي ارتکاب وشي په هغه سړي باندې دم لازميږي. معنی دا چې د محظور شي د ارتکاب له امله چې له هغه نه کومه ګناه صادره شوې وه هغه د دم (قرباني) په اجرا کولو سره ور بخښل کيږي. همداراز هغه خطا چې له طالبانو نه د بتانو په ماتولو کې د ځنډ له امله صادره شوې ده لوی خدای دې په هغه د غو سلو قربانيو له امله وروبخښي او اسلامي امارت په نور هم د الله په دربار کې مقبول شي او په دې ډول به د الله تعالی د خاص رحمت او فضل وړ وګرځي. انشاالله التعالی

ماخذونه:


١ صحيح بخاري، دوهم ټوک باب غزوه الفتح.

٢ البدايه والنهايه، لعامه ابن کثير "رح" ٣ ټوک ١٨٠ مخ دارالکتب العلميه بيروت لبنان

٣ پورتني ماخذ دوهم ټوک ٣٢۶ مخ دارالکتب العلميه، بيروت، لبنان.

۴ همدا ماخذ لومړ ټوک ١٣۶ مخ

" " " "

۵ همدا ماخذ " " "

" " "

۶ سنن نسائي، دوهم ټوک، باب تفاضل اهل الايمان.

# نبه سوچې تر روسانو لاهم ګنهګاره وګڼل سولو

حاجي عبدالستار "حيراني"

لله الحمد چې د كائناتو خالق د ټولو ذالروحو رازق "جل جلاله" د افغانستان مومن او خداي مين ملت يو ځل بيا د اسلام په جرم د بوې موٴمني او مجاهدې خيرې د ميلمه نوازۍ په جرم . د اسلامي شريعت د پلي كيدو په جرم . د ښځو د اسلامي حجاب د عملي كيدو په جرم . باالاخيره د يوه واحد او سرلوړي افغانستان د جوړيدو په جرم د تش په نامه ملل متحد چه په راس كښې يې جهانخوره امريكا او وينې څښونكې روسيه او په دوى پورې تړلې كفري يا غيري كفري مملكتو لخوا اقتصادي بنديزونه ورپه برخه سوه . په حقيقت كښې دا هغه نبوي صلى الله عليه وسلم سنت وو چې پخپله دغه خوږيدلي اولس يې پر ځان باندې د عملي كيدو توان نه درلود . دا الهي اراده او پيرزوينه وه چې د دغه درونډ او قيمتي سنت د عملي كيدو افتخار يې د پنځلسمې هجري قمري پيړۍ په دريمه لسيزه كښې د دغه قران مين او سرتيري ملت په برخه كړ . د جهان د ښكيلاكيانو او مستكبرانو نظر دا وو چې پدې بهانه چې موږ دغه بنديزونه پر عوامو نه بلكې د طالبانو پر حكومت او نظامي تاسيساتو لګولي دي ګونډې ملت او حكومت پدغه خپل شيطاني فريب يو د بله په خلاف كښې واقع كړي او پدغه فريب او نيرنګ خپله سوپې استفاده وكړي . مګر دغه جهاني فرعونيان دغه د انسانانو په سرنوشت لوبې كوونكي . دغه په سويه سحر ګران خبر نه وه چې دا هغه ملت دي ليري به نه ځو چې كوم وخت د سره ښامار (شوروي اتحاد) لخوا وړباندې په مستقيم ډول يرغل وسو د يوې متحدې رهبرۍ د نه درلودلو يا وجود ټوله اولس پخپله رضا او پخپل شوق په ډير افتخار پخپله هغه قراني مينه چې په زړو كښې يې درلودل د لوي خداى "ج" په نصرت د قرباني و ډګرته راووتل . خپلې اوسپنيزې سينې يې د روسانو وتوپ او ټانګ ته سپر كړې . او په خپله بې ساري قرباني يې د وخت استكبار شوروي اتحاد ته داسې غابښ ماتوونكې ځواب وركړ چې نوم يې بالكل د جهان د نقشې څخه ورك سو ايا په هغه وخت كښې و دغو خداي مينو مجاهدينو ته په هغه تور وغرو سپيرو دښتو او وچو ريګو كښې د چا لخوا ورته وريجې غوښې مقرري وې . د چا لخوا ورته د مقام وړانديز سوي وو . خوك يې د تشويق باعث ګرځيدلي وه . خو دا هر څه د ټينګ ايمان او كلك عزم تقاضا وه . دا اسلامي غيرت او اسلامي غرور وو . دا د غلامۍ تر ژوند د شهادت د مرګ خوښول وه . الحمدلله نن خو تر پرون يو په سله دا ملت د نيك بختۍ په درشل كښې واقع دي . نن خو لاړه يوه ده . قوماندان يو دي . امير يو دي . شريعت نافذ دي . ځان ځاني له منځه تللې دي . نژاد پرستي . منطقه پرستي وركه سوه نو بيا به څنګه دا ملت د سحر ګروپه جادو تيروزې ولې به د خداي "ج" ناشكري كوي . څنګه به د خپل اسلامي امارت پخلاف دريږي . نه نه هيڅكله به انشاءالله دا ملت په شيطاني دسيسو ونه غولېږي . د دې ملت مثال د اوسپنې دي هر څومره چې د دښمن لخوا تكول كيږي هغومره كلكه او پخيږي . دا ملت به هغه وخت خپه او د خپل اسلامي امارت څخه ناراضه وي كه چيرې كافرانو ورته د دوستۍ په سترګه وكتل يا د كافرانو سره يې دوستانه اړيكې ثابتې سوې . څكه چې كافران تر هغه وخته د مسلمانانو دوستان كيداى نشي تر څو مسلمانان د دوى د كثيفې لارې لاروي نشي . د دوى د غلامۍ ځنځير يې غاړې ته ونه لوېږي . او دوى ته د تسليمۍ غاړه كښې نږدي .

هوكې ! روسانو په مستقيم ډول پر افغانستان تجاوز وكړ په لكونو بې ګناه انسانان يې شهيدان كړل . مسجدان يې راونړول د كلي او كوره يې مهاجر كړلو خو د هيچا لخوا وړباندې اقتصادي بنديزونه ولګيده . اسرائيل چې هره ورځ په لس ګونو فلسطينيان د خپلو حقوقو د غوښتلو په منظور شهيدان كوي هيڅ څوك وړباندې اقتصادي بنديز نه لګوي هيچا د خفګان اظهار ونه كړ نو يقينا به موږ تر روسانو ګنهګاره يو . ولي چې موږ خپل ټپيدلي كور جوړه وو موږ پخپل كور كښې دلسو مشرانو پر ځاى يو مشر انتخابوو . موږ نه غواړو چې په يوه كور كښې لس ځايه اشپزې وسي . موږ غواړو چې ټوله پر يوه دسترخوان خپله ډوډۍ وخورو موږ غواړو چې د بې اتفاقۍ تغرټول كړو د خپلو شهيدانو ارمانونه پوره كړو . د خپل هجرت او جهاد نتيجې لاس ته راوړو . الهي حكم حاكم كړو . خو دنيا راته په بله سترګه ګوري . په مختصر ډول بايد ووايم چې دغه اقتصادي بنديزونه د افغانستان د اسلامي امارت ملت تر منځ د مينې او محبت د لاښه زياتوالي څرګندوي دي . انشاءالله

# حرمین شریفین

مجیب الرحمن "مجیب"

د حرمینو شریفینو په باب معلومات د دغو مقدسو اماکنو په هکله پلټنه د هر مسلمان شرعي مکلفیت دی . ځکه چیرته چې اسلام ظهور کړی . چیرته چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم په پیغمبری معبوث شوی . چیرته چې د آسمان وحی مظهر ګڼلی شو . هغه د الله "ج" د نړیوال دین له سترو شعایرو څخه دی او د دې شعایرو په باب علاقه نیول د هغو په اړه پلټنه او مطالعه او د هغه د استقلال فکر برسیره پردې چې د هر مسلمان مکلفیت دی ، همدومره د مسلمان د دنیوی او اخروي نیکمرغیو سبب هم ګرځی .

الله تعالی د بیت الله په باب فرمایي : (( بیشکه لومړی کوټه ( بیت الله ) چې جوړه شوی ده له ټولو پخوا ( د عبادت لپاره ) خلکو ته خامخا ( هغه کوټه ) هم دا ده چې مکه مبارکه ده او لاربښوونکی ده خلکوته د جنت ، په دې کوټه کې ښکاره اثار شته چې یو پکښی مقام ابراهیم ( ع ) دی او .... )) ال عمران : ۹۶ .

د حرم شریف د هستبدو په برکت او د حضرت ابراهیم علیه السلام د دعاګانو په نتیجه کې نن مونږ او تاسی وینو چې په نړۍ کې له یو ملیارد زیاتو کسانو په تعداد په اسلام ګروهیدلی دی او د محمدی صلی الله علیه وسلم امت سترکهول یادیږی .

د قرآن عظیم الشان له شانه څخه دا ثابته شوی ده چې د کعبې شریفې د عمارت لومړنی جوړونکی حضرت ابراهیم خلیل الله علیه السلام دی او د هغه زوی اسماعیل ذبیح الله علیه السلام ورسره د شاګرد په توګه کار کړی دی . مفسرینو د اسلامی نصوصونه په استفادې سره په دې اړه داسې تصریح کړې چې حضرت ابراهیم علیه السلام د الله پاك په امر او د جبرائیل علیه السلام په مشوره د کعبې شریفې اساس کښیښود ، همدارنګه د کعبې په ابادولو کې حضرت اسماعیل علیه السلام چې د کعبې خونې جوړولو په دوران کې دځان دقربانۍ په وړاندې کولو سره د الله تعالی له پلوه د ذبیح الله په لقب مشرف شو.هم یې له خپل محبوب پلار حضرت ابراهیم ( ع ) سره پوره ونډه درلودله ، هغه څه چې له قرآنی نصوصو څخه راجوت کیږی دا دي چې حضرت ابراهیم علیه السلام د کعبې شریفې د ودانولو وروسته د مکې اوسیدونکو او خپلې اولادې او همدارنګه د نړۍ ټولو مسلمانانو ته د خیر او برکت دعا ګانې وکړې ، او همدارنګه هغوی ته یې د هغوی له خپلوانو څخه د پیغمبر دعا وکړه تر څو هغوی هدایت شي او د الله جل جلاله د رحمتونو او پیرزوینو مستحق وګرځی چه هماغسې وشوه .

د حضرت ابراهیم او حضرت اسماعیل علیه السلام نه وروسته د کعبې شریفې خونه د زمانې د حوادثو په ترځ کې یو ځل بیا ورانه شوه چې عمالقه و هغه له سره جوړه کړه تر دوی وروسته بنی

جرهمو د کعبې شریفې سرپرستي
کوله څو دغه د سرپرستۍ سلسله
د قریشو د قبیلې تر دوره پورې
درلود .

په صحیحو روایاتو کې داسې
راغلي دي چې د زور ورسیلاب له
لامله د قریشو په دوران کې د
کعبې خونې ته سخت زیان ورسید
چې د قریشو سرداران په دې متفق
شول چې کعبه شریفه له سره جوړه
او ترمیم شي څو هغه وو چې بیا
جوړه شوه کیسه یې مشهوره ده .

کله چې د هجرت پر اتم کال د
رسول الله صلی الله علیه وسلم د
بریالی فوج په لاس مکه فتحه شوه
نو رسول الله صلی الله علیه وسلم
د خپل لومړنی اقدام په ترڅ کې د
کعبې دننه او د باندې د ۳۶۰
بتانو د ماتولو او نسکورولو امر
صادر کړ او د کعبې په اصلي
جوړښت کې یې هیڅ بدلون رانه
ووست مګر د امیرالمؤمنین
حضرت عمر الفاروق بن الخطاب
د خلافت په دوران کې د مسجد
الحرام د پراخولو کار پیل شو او د
کعبې شریفې څیرمه کورونه په
دایروی شکل په جومات بدل شول
چې دغه کار په ۱۷ هجري کې
ترسره شوه او د کورونو مالکانو ته
یې د کورونو په بدل کې له بیت
المال څخه پیسې ورکړې . او بیا د
امیرالمؤمنین حضرت عثمان بن
عفان په وخت کې د مسجد حرام
ساحه نوره هم پراخه شوه . او بیا د
امویانو د خلافت په دوران کې چې
د ۴۱ هجری څه تر ۱۳۱ هجری
پورې یې دوام وکړ د حرمینو
جوړولو او پراخولو ته ځانګړې
توجه وشوه چې په ۶۴ هجری کې
د حرم د مځکې ساحه تر
۷۵۶۴۰ مربع مترو پورې پراخه
کړل شوه .

قدرمنو لوستونکو !

دا چې په تیر وخت کې د مسجد
حرام د ساحې د بیت الله شریفې د
اطرافو د پراخولو هڅې زمونږ او
ستاسې اسلافو کړې وې او هغوی
دا کار د خپل ځان لپاره یوه وجیبه
او خپل فرض بللې وو د هغوی
سره په دې اړه غم او تشویش وو
نو ځکه یې دا کار وکې، نو په
اوس وخت کې چې هغه ضرورت
کوم چې د هغه رفع او پورته کول
زمونږ او ستاسې اسلافو کړې دي
او د هغه ضرورت په اوس وخت
کې نه محسوسیږي نو بنه په اوس
وخت کې بل داسې ضرورت شته
چې هغه باید مونږ او تاسې د
خپلو اسلافو وارثان په اوس وخت
کې پوره کړو . د نړۍ ټولو
مسلمانان باید په دې اړه خپلې
هڅې او زیار وکړي او خپله وظیفه
وپیژني ځکه دا داسې یو دردناکه
مصیبت دی چې د نړۍ ټولو
مسلمانانو او بیا په خاصه توګه د
حرمینو مځکې ته ورپیښ او
وربانډې نازل شوی دی . د دې
مصیبت په پورته کولو کې د نړۍ
ټول مسلمان دا وظیفه لري چې د
حرمینو د مځکې څخه د کفارو د
لښکرو د ایستلو کوښښ وکړي
چې امریکائي قواوې یې د دغه
لښکرو په سرکې واقع دي او شمیر
یې سلګونو زروته رسیږي دغه
قواوې د هوا . بحر ځمکې له لارې
دلته رارسول شوي دي او د
حرمینو د مقدسې ځمکې په
ستراتیژیکو او مهمو طرفونو
کښې ځای پر ځای شوي دي . نو د
ټول اسلامي امت څخه په عامه
توګه ، او د علماء کرامو څخه په
خاصه او په جدي توګه د دې
غوښتنه کیږي چې په ډیره میړانه
او مدبرانه توګه د دغې عظمی .
دردناکې او مصیبت ناکې واقعې
په وړاندې چې د عربو په جزیره
کې وروسته له اسلامه او ترمخه له
اسلامه ساري نلري یو صف جوړ
کړي او یو قوت شي او خپل ټول
قوت او طاقت د دغه حوادثو په
وړاندې وساتي .

# د جعفر بن عیسی بر مکی د مور کیسه

د کوفې قاضي بن غسان کوفي رحمه الله فرمایي چې زه یو ځل د لوی اختر د مبارکۍ لپاره د خپلې مور خدمت ته حاضر شوم . له هغې سره مې یوه بوډۍ ښځه ولیده چې شلیدلې او زاړه کالي یې اغوستي وو خودخبرو ،هوښیارۍ ، فصاحت او بلاغت له پلوه ډېره پوهه او درنه ښځه وه . ما مې له مور نه وپوښتل چې دا بوډۍ څوك ده ؟ هغې راغبرګه کړه چې دا دې تورۍ رعانیه ده او د هارون رشید رحمه الله تعالی د وتلي او منلي وزیر جعفر بن یحیی برمکي مور ده . زه د هغې د دغه وران ویجاړ حالت په لیدلو خو دا سخت خواشینی شوم . ورورانډې شوم او سلام مې پرې واچاوه . له روغبړ نه وروسته مې له هغې نه وپوښتل چې له خپل هغه وخته ( دپاچاهي او وزارت له وختـه ) دغه حالت ته څنګه راورسیدلې ؟ هغې سوړاسویلی راوایست او ویې ویل :

های زویه ! مور په شیندلو او پاشلو یعنې د شتمنۍ په ضایع کولو بوخت وو چې وخت له مور نه مرور شو او ژرندې سرچپه ځرخ پیل کړ .

ما ورته وویل ښه د خپل ښه وخت یوه پیښه راته بیان کړه . هغې داسې ځواب راکړ . د خپلو ښو وختونو یوازې یوه کوچنۍ پیښه درته بیانوم . ته نو زموږ ژوند هم له هغې سره پرتله کړه یوازې درې کاله دمخه د هغه لوی اختر ورځ وه ما د اغوستلو لپاره سل جوړې کالي درلودل . ما فکر کاوه چې زوی مې له مانه یاغي دی خو هغه یوازې د اختر دمبارکۍ په ښه ماته د څلورو سوو وزواو دریو سوو غوایانو سرونه راولیږل . سره زر سپین زر او د اغوستن کالي له دې پرته وو . خو تن دا دی زه تاسې ته د میږو د دوو څرمنو د غوښتلو لپاره راغلې یم . یوه به یې کورتۍ او بله به یې څادر کړم او د شپې له سړونه به ځان پرې وژغورم . قاضي محمد بن غسان رحمه الله فرمایي چې زه د دې پیښې په اوریدلو سخت خواشینی شوم او په خدای قسم چې ومې ژړل . د جعفر بن عیسی برمکي د مور د دغه حالت په لیدلو سره ما خپلې تولې سل طلائي اشرفۍ هغې ته وروښلې ، رښتیا هم دنیا څومره بې وفا ده ، په ډېر کم وخت کې انسان د غزت او عظمت له اسمان نه ذلت او سپکاوي کندې ته وغورزوي . ایا دا پیښه زموږ د عبرت لپاره بس نه ده ؟ کاشکې چې د دنیا یوه ستونزه وای . سلګونه ستونزې دي یو خو د مال او اولاد حرص او غم دی او بله خوا انسان له دینه لیرې کوي .

**د حضرت مالك بن دینار " رح " عبادت**

حضرت مغیره بن حبیب "رح" فرمایي . ما چې به کله دنیك نو بزرګانو د عبادت او مجاهدې کیسې اوریدې نو ډېر خوند به یې راکاوه . بله ورځ مې فکر وکړ چې ولې پخپله کوم بزرګ نه ځارم خپلې دغې موخې لپاره مې دحضرت مالك بن دینار رحمه الله پته ځار نه پیل کړه هغه به ماسخوتن اودس وکړ او لمانځه ته به ودرید . کله ناکله به یې توله شپه د دریو ایتونه په تکرار کې تیره کړه او کله ناکله به یې ور ور قرائت ډېر کړ کله چې به له امانځه نه وزګار شو نو خپله ږیره به یې په موټ کې ونیول . په ژړا به یې پیل وکړ او دغه دعا به یې کوله .

ای زما څښتنه ! زما له حاله خبره او زما په ناروغۍ پوهه خدایه !

د یوه لار ورکي ، زړه خوږي او غمجن چیغې او فریاد واوره !

ستا رحم تر غضب زیات دی او ستا مینه تر کرکې ډېره ده! ته په خپله وایې " یحبهم و یحبونه . ( المائده ایت ۵۴ ) محب خپل حبیب ته عذاب نه ورکوي ته دمالك په سپین ږیرتوب ورحمیږه هغه داورله عزابه وژغوره .

ته د جنتیانو او دوزخیانو په حال ښه خبر یې . تا ته جوته ده چې د مالك ( بن دینار ) کور جنت دی که دوزخ خو خدایه ! مالك هیڅ څه هم نه لري او بې ټیې جنت غواړي .

هغه به تر سهاره دغه دعا غوښتله او بیا به یې د سهار لمونځ د ماخوستن په اوداسه ادا کړ .

# په زړه پورې اصطلاحات

د ډاکتر نصرالدين تولونه :

کال ( year) : هغومره وخت ( زمان ) چې يو ستوری د لمر پر شاوخوا راګرځي کال نوميږي نجوميان کال په دې ډولونو ويشي.

۱- د ستوري کال ( Sidereal ) : ۳۶۵.۲۵۶۴ ورځې يا ۳۶۵ ورځې ۶ ساعته ۹ دقيقې او ۹.۵۴ ثانيې دي.

۲- لمريز کال ( Solar year) د لمر پر شاوخوا د ځمکې د پوره ګرځيدنې منځنی وخت يا ۳۶۵.۲۴۲۲ ورځې، ۵ ساعته، ۴۸ دقيقې او ۴۵.۱۵ ثانيې دي.

۳- رسمي کال ( Civil year ) : ۳۶۵ منځنی لمريزی ورځې. هره ورځ ۲۴ ساعته ده په دې محاسبه کې د ۰.۲۴۲۲ ورځو د جبران لپاره. دا اعشاری عددونه په هرو څلورو کلونو کې يوه ورځ شماری او هغه ته کبيسه کال وايي. له دې سره سره بيا هم ۰.۰۱۳۲۱۴۷۸ ورځ پاتې کيږي. د دې توپير د جبران لپاره د هری پيړی په پای کې يوه ورځ حسابوی او دغه هم کبيسه کال جوړه وی. په دې شرط چې د نوموړی عدد د کينې خوا، دوه رقمونه پر ۴ تقسيم شی. په دې توګه په ۱۶۰۰ او ۲۰۰۰ ميلادي او ۱۲۰۰او ۱۶۰۰ هجری شمسی کلونه کبيسه وی. او ۱۷۰۰-۱۸۰۰ او ۱۹۰۰ ميلادی او ۱۳۰۰-۱۴۰۰ او ۱۵۰۰ هجری شمسی کلونه به کبيسه نه وی. قبل الميلاد : Pro-Christ : تر ميلاد د مخه يعنی د حضرت عيسی " ع " د زيږيدو تر مخه زمانه.

قبل التاريخ : Pro-date : له تاريخي دوري څخه د مخه دوره هغه زماني دوره چې ترثبت سوی تاريخ د مخه وي يعنی له ۵۰۰۰ تر ۷۰۰۰ ق. م تاريخ له هغه وخته پيل کيږی بشر د لومړی ځل دپاره د ځان ساتنې يا معيشيت په خاطر يوه تدافعي يا توليدی آله جوړه کړه. د همدې الې د جوړيدو څخه دليك د ايجاد تر نيټې پوری زمانه، هر څونی چې ده، د قبلالتاريخ دوره بلل کيږی.

ګرينويچ ټايم ( منځنی Grean wich ( G.M.T )mean time ) د انګلستان او نوری لويديځی اروپا هغه رسمي وخت ( زمان ) چې د صفر نصف النهار يا د ګرينويچ د محلی وخت ( زمان ) پر نسبت ټاکل شوی دی دا وخت د نړيوال وخت په توګه د مسافرتونو، د الوتکو د الوتنو د هوا پوهنې د چارو او نورو نړيوالو مسايلو د اسانه سمون لپاره خورا ارزښت لری.

محلی ټايم ( وخت ) ظاهری وخت ( زمان ) Apparent time هغه وخت دی چې د لمر د ظاهری حرکت پر بنسټ ټاکل کيږی. په دې اساس ظاهری ظهر هغه شيبه ده چې لمر په اسمان کې د خپل ظاهری حرکت د مدار تر ټولو جګ ټکی ته رسيږی او د ځمکې موجودات خپل سيوری تر ټولو لنډه وی.

رسمي ټايم Standard time : د يوه ټاکلی نصف النهار منځنی وخت ( زمان ) چې د يوې لوی سيمې لپاره تقسيم او رسمي شوی وی.

سنه ( Year) : کال ( ۱۲ مياشتې ) نيټه. تاريخ د وخت يا زمان شميرنې هغه سيستم دی چې د يوه ملت په تاريخ کې له يوې مهمې پيښې څخه راوروسته کلونو ته پرلپسې عددونه کښيښول شي. مثلا عيسويان خپله سنه د حضرت عيسی ( ع ) له زيږيدنې څخه پيل کړی ده او مسلمان يې مدينې منورې ته له مکې معظمې څخه د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم له هجرت ( ۶۲۱م ) څخه پيلوی.

شمسی سنه + ۶۲۱= ميلادی سنه.

ميلادی سنه - ۶۲۱= شمسی سنه.

عيسوی. ميلادی يا ګريګوری تقويم Gregorian Calendar : عيسوی کال يا د ګريګوری تقويم نن سبا د نړی په ډيرو هيوادونو کې دود دی. دا تقويم په کال ۱۵۸۲ کې د پاپ ګريګوريوس په واسطه د ژولين د تقويم پر بنسټ عام سو. د ژولين په تقويم کې کال په منځنی توګه ۳۶۵,۲۵ شپې او ورځې منظور شوی وو حال دا چې شمسی کال ۳۶۵.۲۴۲۲ شپې او ورځې دی. هغه توپير چې په دې توګه مينځ ته راتلو په ۱۶مه پيړی کې لسو ورځو ته ورسيدی. له همدې امله د يو پسرلی پيل د مارچ له ۱۲ څخه ۱۱ ته وليږديد. پاپ ګريګوريوس له ۱۵۸۲ کال څخه لس شپې او ورځې کمې کړې او ويې ويل چې تر دې وروسته دی هغه کلونه چې د دوو صفرونو ( ۵۵ ) پای ته رسيږی او په ۴۰۰ قابل تقسيم نه وی. کبيسه کال ونه بلل شي. په دې تقويم

کې کال د جنورۍ په لومړۍ نېټه پیل کېږي او میاشتې یې دا دي : جنوري ۳۱ ورځې ، فبروري ۲۸ یا ۲۹ ورځې مارچ ۳۱ ورځې ، اپریل ۳۰ ورځې ، مئی ۳۱ ورځې ، جون ۳۰ ورځې ، جولائی ۳۱ ورځې ، اګست ۳۱ ورځې ، سپتمبر ۳۰ ورځې ، اکتوبر ۳۱ ورځې ، نومبر ۳۰ ورځې او ډسمبر ۳۱ ورځې . قمري تقویم Lunar Calendar: پر مځکه باندې شاوخواد سپوږمۍ راګرځېدل دي چې په منځني توګه د یوې نوې میاشتې څخه تر بلې نوې میاشتې پورې ۲۹.۵ ورځې ، ۴۴ دقیقې او ۳ ثانیې وخت نیسي په عربي "شهر" او په پښتو میاشت ورته وایي .

قمري میاشتې د کال په فصلونو پورې اړه نه لري

د مځکې کره په ۲۴ ساعتونو کې د طول البلد ۳۶۰ . د لمر وړانګې له مخې تیروي څرنګه چې د مځکې وضعي او د سپوږمۍ انتقالي حرکتونه دواړه له لویدیځ څخه ختیځ ته کېږي نو د ۵ پر طول البلد کې د سپوږمۍ راختنه د مازدیګر پر ۶ بجو ولیدل شي . په سبا به یې په هغه درجه د طول البلد کې سپوږمۍ ۵۰ وروسته راوخېژي . نو ځکه د سپوږمۍ ورځې د ۳۰ شمسي ورځو په جریان کې یوه ورځ او ۶۰ تر شا کېږي . دغه کیفیت د لمر په شاوخوا د مځکې په انتقالي حرکت هم اړه لري چې د هرې ورځې په جریان کې د سپوږمۍ پر انتقالي حرکت کې ځند رامینځ ته کېږي . د کال په جریان کې د اوج ، حضیض او اعتدالینو په نقطو کې د سپوږمۍ د انتقالي حرکت ځند توپیر مومي . ځکه هغه لاز چې سپوږمۍ یا مځکه په دغه نقطو کې وهي . د کپلر د دوهم قانون له مخې توپیر مومي . همدا سبب دی چې د قمري میاشتې یا ۲۷ ورځې یا ۲۸ یا ۲۹ وي .

قمري سنه : هجري قمري سنه هغه سنه ده چې مدینې منورې ته له مکې معظمې څخه د حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم له هجرته ( د جمعې ورځ د جون ۱۶مه ۶۲۲م کال ) پیل شوې ده . او مسلمانانو د خپل تاریخ د مبدا په توګه منلې ده . د کال اندازه یې د مځکې پر شاوخوا د سپوږمۍ د څور لیدو څخه تاکل شوې ده چې ۱۲ شمسي میاشتې یا د نږدې ۱/۳ ۳۵۴ ورځې کېږي . د قمري سنې د حاصلولو فارمول داسې دی . که هجري شمسي کال څرګندوی او هجري قمري پیدا کول غواړو نو :

هجري شمسي کال پر ۳۳ ویشو . حاصل تقسیم پر هجري شمسي کال زیاتوو . هجري شمسي کال لاس ته راځي .

41.788=33:1379

1379+42=1421 هـ . ق .

که میلادي نېټه ښکاره وي او هـ .ق معلومول غواړو :

41x75=1378/33

هـ . ق = م ـ 621+33/ م ـ 621

1378=621_1919هـ .ق مثلا

1420 = 1378+24هـ.ش

یادونه : په ۳۲ یا ۳۳ کلونو کې یو قمري کال بشپړېږي . قمري میاشتې دا وي . محرم الحرام ( حسن حسین میاشت ) صفر ( سپره ) ربیع الاول ( لومړی خور ) ربیع الثاني ( دوهمه خور ) جمادي الاول ( دریمه خور ) جمادالثاني ( څلرمه خور ) رجب ( خدای تعالی میاشت ) شعبان ( برات ) رمضان ( روژه ) شوال ( کوچنی اختر ) ذیقعده ( میانۍ ) او ذوالحجه ( لوی اختر ) میاشت . هجري شمسي سنه : Higira-solar Calendar : دا هغه سنه ده چې د لمر پر شاوخوا د مځکې د چورلیدو پر اساس حسابېږي . د هجري شمسي سنې مبدا . مدینې منورې ته له مکې معظمې څخه ، د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له هجرت څخه پیل کېږي . د دې سنې میاشتې دا دي . وری ( حمل . فرودین ) Aries . غویی ( ثور . اردیبهشت ) Trurus . غبرګولی ( جوزا . خرداد ) Gemini . چنګاښ ( سرطان . تیر ) Cancer . زمری ( اسد . امرداد ) Leo . وږی ( سنبله سهریور ) Virgo . تله ( میزان . مهر ) Libra . لړم ( عقرب . ابان ) Scorpion . لیندۍ ( قوس . اذر ) Sagittarivs . مرغومی ( جدی . دی ) Carricornus . سلواغه ( دلو . بهمن ) Aquarius . او کب ( حوت . اسفند ) Pisces . میاشتې . په هجري شمسي کال یا سنه ( هجري لمریز ) کې لومړي شپږ میاشتې ۳۱ ( شپې او ورځې ) پنځه میاشتې ۳۰ ( شپې او ورځې ) او د کب ( حوت ) میاشت په عادي کلونو کې ۲۹ شپې او ورځې او په کبیسه کال کې ۳۰ شپې او ورځې وي . دا تقویم پر نجومي حساب ولاړ دی او د کال لومړۍ ورځ ( نوروز ) د پسرلي د فصل د پیل په توګه د درناوي وړ بلل کېږي .

# کمزوره او غریب هلک څنګه ستر لیکوال شو ؟

ژباړه : رفیق احمد اریا

" پلېز . ما لاندې مه غورځوئ . زه غورځېږمه . زه خوږېږم ، " تنکي برټي ویلز وویل . دا اټکل ( ۹۴ ) کاله وړاندې کیسه ده . چې د لندن په چاپیرو باندېونو په یوه کوڅه کښې شو خو هلکانو یو کمزوره هلك برټي ویلز په لاسونو کښې پورته کړی وو . او د توپ رنګه یې یو بل ته غورځاوه . بیا هم هغه وشوه چې ویره یې وه . ناتوانه هلك پرمخکه ولوېد او پښه یې ماته شوه . د پښې د ماتیدولو په لامل برټي ویلز پر بستر پاتې شو څو میاشتې وروسته یې د پښې د کتنې سره څرګنده شوه چې هډوکی یې ناسم جوړ شوی دی ځکه یې نو هډوکی د دویم ځل لپاره وښوراوه او سم یې ځای پرځای کړ چې ورسره پر تنکي برټي ناپایه تکلیفونه تیرشول هغه وو چې دی څو ورځې پربستر بې هو ښه پریوت .

همدا لامل وو چې تنکی برټي ویلز د تلولو جوکه نه شو . پربستر دې اوږدې پروتې ډیر زړه تنګی کړ ځکه نو ده هم د کتابو لوستل پیل کړه . لوی کو چنې هر کتاب چې به لاس ته ورتلی ده به لوستی . د مطالعې کول یې په عادت کښې شامل شول . د پښې له جوړیدو وروسته یې د خپلې سیمې ټول کتابتونونه ولوستل .



د تنکي برټي په زړه کښې له لوستلو سره مینه پیدا شوې وه . خو دا چې د کور اقتصادي وضع یې ښه نه وه او دري وخته په نس لاهم سم ماړه نه وه . ځکه یې نومور د دري وخته وچې ډوډۍ پیدا کولو لپاره هغه له یوه خیاطه ( ګندونکي ) سره کښېنوی . خیاط له تنکي هلك څخه ډیر سخت کار اخیستی . کوچنی هلك به سهار وختي دوکان ته تلی صفایي به یې کوله له یخه څخه د ساتنې لپاره به یې اور بلوی چې دوکان تود شي د ده د څوارلس ساعته هاند او تکلیف سره یې استاد ډیر لږ مزدوري ورکوله . خو پر دې سربیره یې ده ته د تمبلی او کاهلی پېغور لاهم ورکاوه چې یوه ورځ یې پر همدې تمبلی او سستی باندې یوه څپیړه وواهه او له کاره یې وویست . هو په هغه ورځ یې د تمبلی او کاهلی لامل دا وو چې تنکي برټي ډیر ستړی شوی وو ځکه نو ده ته خوب ورغلی وو .

له خیاط نه ده وتولو وروسته یې بیا ده یوه دوا پلورنکي سره کار پیل کړ خو د ده تنکی بدن هلته هم سم کار نشو کولای چې دوا پلورنکی هم له کاره وویست

تنکي برتي بيا هم همت نه بايلي ځکه يې د کور دحالت د ښه کولو لپاره د کار موندلو هڅه روانه وساتله د څو ورځو منډو او ځغاستو وروسته يې يو ځل بيا له يوه خياطه سره کار وموند خو دا خياط وه نورو خلکو ته ورته سخت طبيعته نه وو . ځکه نو برتي ويلز هم تر دوکلونو پورې کار ورسره وکړ . دلته ده د کتاب لوستلو وخت هم وموند خو بيايې هم له خياط څخه په پټه کتابونه لوستل چې هسې نه د کار نه کولو په پلمه مې له کاره ونه باسي .

د برتي ويلز ورکتوب په ډيرو ستونزو او مفلسۍ کښې تير شو . دې ورو، ورو مزدوريو او ناپايه هاند او تکليف دی ډير کمزوری کړ خو د مالکانو دې هر ورځنۍ خوروني يې بيا بيخي زړه له کاره ورتور کړ . د ډول ډول مزدوريو په کولو سره اخير دومره زړه تنګی شو چې يو ورځ مور ته په ژړا شو او ورته وې ويل چې نور به دی هيڅ مزدوری نه کوي . بس سوازي به درس وايي .

د تنکي برتي اوښکې چې يې د مور پر زړه راتوی شوې . نو ډيره بې تابه شوه خو دا خوارکۍ هم مجبوره وه چې ويلز کارنه وايي کړي نو درې وختـه کېده به يې په څه مړو له خو بيا هم مور دې برتي ته مشوره ورکړه چې ده خپلې ښوونځۍ له سر ښوونکي سره دې خبره يـاده کـړه چـې زه لوستل غوارم .

تنکي برتي ويلز د سرښوونکي سره وليده هغه ته يې يو ليك واستوی چې په ليك کښې يې پرځان راغلـی ستونزی او تکليفونه ټول وليکل ورسره يې په آخير کښې دا هم وليکل چې که ده ته د لوست زمينه نه شي برابره نو د ده پـدې نـړۍ کـښې د ژونـدي پاتې کيدو هيڅ ګټه نشته او دی به خپل ځان ووژنی .

د تنکي برتي هيڅ يقين نه وو چې سرښوونکی دي د ده ليك تـه څه اهميت ورکړي . خو نه . داسي ونشوه . نيك زړه ښوونکي د ليك لوستلو وروسته سمدستـي د دوی کورتـه راغلی او برتي يې له ځيګر سره جوخت کړ . ډاډ يې ورکړ چې دی دي لـه خپلـه ذهنـه څخـه د نهيلـی ټول فکرونه وباسي . سرښوونکي نه يوازي د ده دلوستلو تا بيا وکړه بلکه په ښوونځی کښې يې ده کار کولو زمينه هم ورته برابره کړه د تنکي برتي له ورانـدی نه د نهيلی تيارہ لرې شوه .

او د ژوندون د خوښۍ ورځې يې پيل شوې خو د لږ وخت تېرېدو وروسته د فتبـال د لوبې کولـو پـر وخـت پـه لوبغالی کښې د سخت غورځيدو په وجه يې ديوه بدوکی او د ښي اړخ سړې سوری شو دا چې ډيره وينه ځينی ولاړه ځکه نو ډاکټرانو وويل چې نور يې د ژوندی پاتې کيدو چانس ډير کم دی . خو بيا هم د څو اونيو د مرګ او ژوند په کش مکش کښی تر تېرولو وروسته يوځل بيا لوی څښتن ج " پر ورحميد او د ژوند په لور بيرته راوګرځيد خو ده معيوبی ژوند په تيرولو سره سره يې بيا هم له مطالعې سره مينه روانه وساتله د تداوي کولو وروسته روغ رمټ شو نو يې د کتابو په ليکلو پيل وکړ .

له ده څخه د تير ژوند ناخوالو سره زر جوړ کړی وو ده په خپلو لنډو کيسو کښې د تير پير له يادلو سره د راتلونکو پنځونو يادونه هم وکړه . ځکه نو خلکو د ده کتابونه په خيرکتيا . مينه او په زړه ورتيا سره ولوستل د ده په دماغ کښې د لنډو کيسو ډول ډول نوښتونه راوټو کېده . هو دی به د شپې له خايه پاڅيد او وه زړه ته راغلی تخليق به يې د کاغذ په زړه کښې خوندي کاوه ده هر کال دوه کتابونه چې د پانو لخوا به ښه ډير بډايه وه ليکل . او له چا په را ايستل چې بازار ته په راتلو سره به سمدستی پېرودل کيده .

ايچ جي ويلز په انګريزي ژبه ډير کتابونه وليکل . خو تر ټولو غوره کتاب يې " اوټ لاين آن هسټري " ومنل شو . کله چې د ده د کتاب " وار آف دي ورلډ " اعلان د راډيو له څپو خپور شو . نو د شمالي او سويلي امريکا په خلکو يو شور او ږوږ کله شو . داسې ښکاريده لکه رښتيا چې د مريخ اوسيدونکو په مځکه يرغل کړی وی .

تنکي برتي ويلز ده دسمبر پر ( ۲۱ ) ۱۸۸۶ ع کال په کينټ ( انګلستان ) کښی وزيږيد . کمزوری برتي ويلز چې په خپل هاند . زيار او همت سره ستر او نامتو ليکوال جوړ شو . او د خپلو د ستاينی وړ پنځونو يې ده نړی په وړاندی کولو سره پر ( ۱۳ ) اګست ۱۹۶۷ ع کال له دې نړۍ سترګی پټې کړې .



# خپله ځیرکتیا وازمایست

کاکازاده




افقي :

۱- لساني : هغه دی چې درې اصلي توري له حرف علت همزه او تفعیف نه خالي وي یا سمه ده .

۲- آیت یا متن . د خروار سلمه برخه .

۳- پالونکی هغه بې بیي وسیله چې استعمار یې تل په کمزوري ازموئي . د "چې ستار ترې هزار دی" مصداق .

۴- له کینې پلوه د "ی" په حذفولو سره بې سیاله کیږي په هند کې بیخي ډیر دی زموږ په هیواد کې هم یو نیم شته .

۵- حیوان .

۶- د هیواد له نامتو قبیلو څخه ده . ژوب لورلائي ، دوکي ، کوټه ، پښین ، کندهار ، زابل او غزني یې د میشت سیمې دي په هرات کې په جامع جومات کې یې هر نښه شته . ښې "غاړې" لرې – د هر څه پای

۷- هغه چې پای یې نه دی معلوم (ګوا کې تل تر تله دی)

۸- د ښکلو له خولې خو بیخي خوند کوي یادخوښي نښه ده – د ملا نصرالله نقشبندي زوی دهیواد نامتو لیکوال ، څیړونکی او شاعر دی .

۹- زیات او لوند – د سالنګ په لوه لاره پروت او خورا ښیرازه ځای دی -شاعران یې له خال سره بیخي لازم بولي .

۱۰- دا "نه" دی . د درد او څریکو په وخت کې په غیر اختیاري ډول کارول کیږي .

۱۱- له معمول سره سم او نورمال ، د خوښۍ غږ .

## عمودي :

۱- لاره – د خوښۍ ورځ .

۲- د ښه عکس – د ښځې عکس .

۳- پښتانه وایي "لس ملنګان په یوه ټغر سره ځاییږي خو دوه پاچایان په یوه هیواد او دوې ښې په یوه کور کې نه سره ځائیږي" هغه چې شهادت یې تر ټولو ستره ارزو ده .

۴- بې مفهومه – ودان .

۵- اوښکې بهوي خو پیازنه دي .

۶- له کیڼې خوانه د هیواد نامتو قام چې پوره ولایت یې په نامه دی – لویه نښه یې د شونډو شنه کیدل به چنغړک لوئیدل او غږ بدلیدل دي .

۷- انسان سخت ځوروي په تیره بیا چې زړه یې هم بایللی وي .

۸- ټول ژوند یې په زړه کې غزلونو "غزوني" کوي تر دې چې د پښتو غزل یې ځوان کړ او په خپله بابا شو – د الوتکې د زغاستي لپاره ډیر ارزښمن دی .

۹- د لرې ختیځ د یوه خورا پر مخ تللي هیواد د پولي واحد نوم دی ـد ابراهیم "ع" د میشت سیمه د حیواني ترانسپورټ په ډله کې تر ټولو کم مصرفه او ارزښتمن شی چې زموږ هیوادوال یې هم ډیر کاروي .

۱۰- ګوره چې دغه توري دې بې سده نه کړي – سوړ .

۱۱- هغه چې د ځان ساري په هندوسند او په کابل و زابل نه ویني او یوپه لس اولس وسله شمارل کیږي . د ایران یو نامتو(یوه) او شاعر دي



## طنز — تیز لوبه

**پوپل باوری**

دا چې نن سبا د نړۍ یو شمیر پرمخ تللي هیوادونه د ساینس او ټکنالوژۍ له مخې په دې توانیدلي دي چې نړیوالو ته هغه څه وړاندي کړي چې دوی تر اوسه جوړ کړي دي. چې د هغو له جملې څخه یو هم اوسنۍ ګړندي "تیز رفتار" موټران دي. اوس اورو چې د نړۍ د اولمپیک کومیټې د ۲۰۰۰ عیسوي کال په وروستیو کې یو شمیر لوبې پیل کړې دي. چې د هغو له جملې څخه یو هم زموږ په هیواد کې د کوچنیو موټرانو تیز لوبه ده.

د لوبې د ډګر "افغانستان" څخه زموږ د لوبو پیژندل شوي خبریال ښاغلي میانه بوس راپور راکوي. هغه لوبه چې تیره ورځ د څو ازاردولو تر منځ په یو لوی اوار میدان کې پیل شوه. په لوبه کې دغو لوبغاړو ګډون کړی و لکه بایپور، لنډکروزر، سراچه، موني او ټونس جان چې د هرې لوبډلې څخه پنځو-پنځو تنو ګډون کړی و. د لوبې منځګړیتوب "ریفریشوب" خوان او وتلي لوبغاړي حاجي کاسترجان په غاړه درلوده.

لوبه په داسې حال کې پیل سوه چې د لوبې رئیس ښاغلي کوریزینګ او د هغه مرستیاله ښاغلي پراډو هم حاضر وه د لوبې په جریان کې د بایپور ډلې یو په بل پسې غلط (پول) وکړ، د لوبې په منځ کې د سره کارټ په ورکولو سره له میدانه وایستل سول. لوبه د ښځینه "سراچه" لوبډلې په ګټه هغه وخت پای ته ورسیده چې څلورو لوبغاړو یو په بل پسې خپل خوږ ژوند له لاسه ورکړ او یوه لوبغاړې بریالۍ سوه چې د نورو لوبغاړو څخه یو نیم ساعت تر مخه وټاکل سوی ځای ته ورسیده په پای کې سراچه لوبډلې دوه د سروزرو مډالونه ترلاسه کړل او ځان ته یې نړیوال ریکاټ وګاټه.

## ټوکه

یو ساده سړی و جمات ته د اخیر تشهد پر وخت ورننوت چې په همدې وخت کې ملا امام سلام وګرځاوه، ساده سړی له دروازې ورباندې ږغ کړل چې وعلیکم السلام خیر ؤ ولي داسې کیږ ناست یاست.

## ټوکه

په یوه کور کې د یوې نجلۍ له پیدا کیدلو وروسته د کور غړي سره راټول ؤ چې پر پیدا شوې نجلۍ یو مناسب نوم کښیږدي پدې مشوره کې د کور یو تن لیون حاله ورباندې ږغ کړل چې ماته یو ښه نوم معلوم دي. خو یو څه د نر خواته نږدې دي کورنیو ورته وویل چې خیر ته یې ووایه لیون حاله وویل چې عبدالصمد به یې بولو

# اوسنی هیله مند هلمندو تیري پاڼک سالاري ته

شیراحمد "حیدر"

لکه چې څرګنده ده . په شل کلن ناورین کې د هیواد هرې برخې ته په هره ساحه کې درونډ زیان اوښتی . او هر څه تالا ترغه شوي دي او نه د وخت واکدارانو څه ځانګړې پاملرنه ورته کړې ده . خو له هغه اوږده ځنډنه وروسته د پشپړې سولې او د اسلامي شریعت په راتلو . په ټوله هیواد کې د بیارغاونې کارونه پیل بلکې د کار هرې برخې ته پوره پاملرنه وشوه . د هیواد او سیمې په بیا رغاونه او په چارو کې د سمون او پرمختګ چارې دا دی سمبالیږي . پدې ورستیو کې زموږ همکار د هیواد . د جنوب لویدیځ یو لوی ولایت هلمند ته سفر کړی وو . او هلته یې د کار هره چاره له نیږدې لیدلې او په دې اړه له امارتي چارواکو سره غږیدلی دا دی ستاسی د بشپړ معلوماتو لپاره د هلمند د د پیژندی سره د دې سیمې راپورتاژ ستاسو په مخ کې ږدو

د هلمند ولایت په ختیځ کې د کندهار په شمال ختیځ کې له ارزګان په شمال او شمال لویدیځ کې د غور او فراه په لویدیځ کې له نیمروز او جنوب کې د پاکستان له بلوچستان سره پوله لري .

هلمند د افغانستان په جنوب لویدیځ کې یو ولایت دی چې اداري مرکز یې د لښکرګا ښار دی چې د هلمند سند ترڅنګ پروت دی . پخوا د دې ولایت مرکز بست و ، خو د هلمند پروژې د اړتیا له مخې والي په لښکرګا کې استوګنه کوي .

نفوس یې د داود خان د واکمنۍ په کلونو کې ۳۲۵.۴۹۸ تنو ته رسیده او مساحت یې په کیلومتر مربع ۵۹۷۲۰.۹۳ دي .

د جغرافیوي موقعیت له مخې د هلمند ځمکه عموما هواره ، شګلنه او نیمه صحرایي ده د شمال سیمه یې دمرکزي لوړو سره پیوسته ده . د هلمند او موسنی کلا سندونه له همدې لوړو سرچینه اخلي منځنۍ سیمه یې د هلمند د سین غاړې ته څیرمه یوه کرنیزه سیمه ده . جنوبي سیمه ټوله شګلنه خو یوازې د ملك او خان غر په جنوب کې پروت دی ، د بکو اومارکو دښتې ټولې شګلنې سیمې دي نسبتا لوړ غرونه یې د بغران . نوزاد . خانشین . کشته ګان په نوم یادیږي او نامتو کوتل یې دشیبان په نوم شهرت لري .

تر ټولو مهم بندیې غربي کلا ده . د هلمند په سیند لوی د کجکي بند زیات اقتصادي اهمیت لري . پیداوار یې پنبه ، غنم ، میوه جات ، ګلیم لنبیات د مرمر ډیره امالګه ده . دغورو او نجاري فابریکې له اقتصادي پلوه د اهمیت وړ دي

د هلمند ولایت د نویو اداري تشکیلاتو له مخې . پخوا یولس او اوس څوارلس ولسوالۍ دي .

ولایت او اداري چارې :

هلمند ولایت ته د هیواد د نورو سیمو په څیر په تیره شل کلنه دوره کې زیات زیان اوښتی وو هم حکومتي اداري ورانې ویجاړې وې او هم اولس ته زیان رسیدلی وو ، چې دا دی الحمدلله د اسلامي تحریك په راتلو او د بشپړې سولې په ټینګښت سره حکومتي اداري فعالې او په مشخص توګه خلکو ته د کار پوره زمینه برابره شوه . د هلمند ولایت چې څوارلس ولسوالۍ لري ټول اداري کارونه یې په پوره پاملرنه په منظم ډول پر مخ ځي . همدارنګه د کار په برخو کې هم په راتلونکې کې داسې پروګرام دی چې دا حاصل خیزه او کرنیزه بیا په پښو ودریږي .



د قلعه بست لرغونی دروازه

د هیواد د نورو سیمو په څیر د هلمند ولایت پوهنیزي او معنوي شتمنۍ هم د شل کلنې غمیزې پر مهال درونډ ګوزار خوړلی وو . او ان چې د نورو ساحو په څیر پوهنې ته هم زیات پام واوښت او دا دی اوس د جمهوري پیر په نسبت اوس یو پر دوه په پوهنې ستنې ټینګیږي او هغه مهال یوازې

پنځوس بابه مکاتب موجود وو . خو اوس دا دی د سولې او پوره امنیت په برکت او د اسلامي امارت په ځانګړې پاملرنه د هلمند په ولایت کې ( ۷۰ ) بابه لیلیه مدرسې او تر یو سلو پنځوس پورې دعصري زده کړو لپاره ابتدایي . منځنۍ اولیسې شته چې دښوونې روزنې چارې یې تر ( ۹۰۰ ) پورې با تجربه استادان پرمخ بیایي .

په مرکز لښکرګاه ښار کې د کمپیوټر او انګلیسي ژبې د زده کړې کورسونه هره ورځ په منظم ډول کار کوي .

همدارنګه دې ټولو ښوونځیو ته چې کوم زیان اوښتی او اوس چې د بیا رغونې کار یا بشپړ شوی دی او یا د بشپړېدو په درشل دی . د لښکرګاه ښار لیسې ته او د هلمند ولایت نورو ټولو مدرسو ته د عیاشې او استادانو ته د فوق العاده معاش بندوبست د اسلامي امارت لخوا کیږي . چې همدا اوس لوی عصري مدرسې ته د اسلامي امارت لخوا او دعالیقدر امیرالمؤمنین د ځانګړي فرمان په اساس ( شل لکه ) افغانۍ فوق العاده معاش ورکول کیږي . او دا دی اوس د دې سیمې د خلکو د پوهنیزې کچې د لوړېدو لپاره پوره هاند او هڅه روانه ده .

که څه هم د هلمند په ولایت کې په ښوونیز ډګر کې هیڅ بهرنۍ مرستې په ټولنې کومې د پام وړ مرسته نه ده کړې او هره چاره د ښوونې او روزنې وزارت سمبالوي . خو کیدای شي د دې چارې د ښه سمون او سمبالښت لپاره یوه هڅه وشي


د هلمند جهادی مدرسه

عامه روغتیا :

د هلمند په ولایت کې د بشپړه سولې د راتلو وروسته د عامې روغتیا په برخه پراخ کار او هڅه شوې ده . چې او س د لښکرګاه په ښار کې د بست ( ۱۲۰ ) بستریز روغتونونه څلورویشت ساعته د ناروغانو درملنه کوي . چې دا روغتون اوس ښه باتجربه متخصص ډاکټران هم لري .

د هلمند په څو ولسوالیو کې هم شل بستریز روغتونونه فعال دي او په څینو سیمو کې روغتیایي کتنځی کار کوي چې ورسره نور روغتیایي پروګرامه هم پرمخ ورسره روان دي . په مرکزي روغتون کې اوس د داخله . جراحی . د سترګو او اطفالو . مردانه او زنانه سرویسونه فعال دي . چې ورسره د ساري ناروغیو ځانګه او همدارنګه نسائي ولادي ځانګه مردانه زنانه لابراتوارونه . د غاښونو کلنیك . د لمرینو روغتیایي مراقبتونو اداره . او د واکسیناسیون ځانګې فعال دي .

همدارنګه همدااوس په هلمند کې د عامې روغتیا له لورې د ښځو طبي زده کړو مرکز فعال وو تر ( ۲۴ ) پورې زده کوونکي د نرسنګ زده کړه کوي . دا په جنوب لویدیځ زون کې یواځنی فعال روغتون دی چې د اطفالو مکمل سرویسونه او متخصص ډاکټران او پرسونل لري

د هلمند ولایت د عامې روغتیا له ریاست سره . بهرنۍ نړیوالې روغتیایي ټولنې مرسته کوي لکه WHO ، WFP او هیلت نیت . خو د عامې روغتیا له خوا بیا لازم مالي تحصیل ورته منظور دی . ورسره په هلمند ولایت او ټولو ولسوالیو او پخپلو لښکرګاه ښار کې د واکسین پروګرامونه منظم روان دي . چې پدې کې د واکسیناسیون د پراخ کمپاین عملي کیدل هم راځي چې پدې کار کې د اصل پلان څخه ۲۴ فیصده زیات اجرات شوي دي .

همدارنګه په روغتیایي چارو او ټولو روغتونو کې د بیا رغاونې او ترمیم کار هم په مکمله توګه شویدی . چې د برق دسیستم فعالیدل او د بست روغتون د انګړ دښکلا لپاره هم پوره پاملرنه شوې ده او ۲۶۰۰ ډول ډول نیالګي ایښودل شوي دي . د روغتون په دننه کې د بستر لپاره د کمښت ستونزه لرې شوې . نوې چپرکټونه او ورسره د اړتیا وړ شیان برابر شوي دي . د طبي سامان الاتو او د جراحي عملیاتو لپاره مرسته نړیوال روغتیایي پروګرام کړې ده . چې پدې لړ کې د روغتیایي اوبو لپاره یو پایه واټرپمپ

یونسف مرسته کړی . او د روغتون د ساتنی او څارنی لپاره د څارونکو خونه د اسلامی امارت په مرسته تیاره شوی ده په ولسوالیو کې روغتیایي مرکزونه دځلکو په مخامخ مرسته فعال شوی دی .

وادی هلمند ارغنداب :

دا یوه لویه موسسه ده چې په پخوا کې چې د هیواد په بیلابیلو سیمو کې مختلفی پروژې درلودې چې د ساری په ډول . د کجکی بند . د سلما بند . د ارغنداب بند ، د غزنی د سردی بند د نهر سراج پروژه د همدی ریاست په چوکاټ کې د ودانولو کار بشپړ شوی دی .

په اوس کې ځینی کارونه لږ ډیر د اقتصادی ستونزو له کبله ورو روان دی . خو د هیواد اقتصاد په کلی ډول متضرر شوی دی ، خو دا ستونزی به انشاالله په راتلوونکو لیږ ډیرې کمی شي . عمومی ریاست د ( ۶۰ ) په شاوخواکې فعال مختلف ډول ماشینونه لری چې اوس هم په کار لګیا دی او همدا اوس د کندهار د لوی ویالی د پاکولو کار د همدی ریاست له خو ترسره کیږی .

د وادی هلمند ارغنداب موسسې پخوا تر ( ۲۵۰۰ ) پوره فنی . مسلکی پرسونل درلود چې دا شمیره په وروستیو کلنو کې ډیره راولویده . چې اوس ( ۳۱۴ ) کسه فنی خدماتی پرسونل لری . د لښکرګاه ټول ښار د همدی ریاست لپاره جوړ شویدی او د لښکرګاه په ښار کې ( چی کومی ) اداري اوس موجودی دي . هغو ټولو په لمریو کې په همدې ریاست پوری ارطبات درلود .

ریاست عمومي هلمند ارغنداب . چې نړیوال شهرت یې درلود د کمونستی انقلاب په زمانه کې روسانو غوښتل چې دا موسسه له مینځه یوسی او کومو باندینو تولنو چې له عمومی ریاست سره ارطبات درلود . دا رابطه پری کړی . د عمومی ریاست ودانی د جګړو په کلنو کې زیانونه لیدلی وو د اسلامی امارت د پاملرنی له کبله اوس دوباره دا ودانی ترمیم شوی ده .

د چانجیر دستګاه چې د ریاست عمومی مربوط ده پخوا ډیره فعاله وه او پخپل وخت کې یې د ماشینونو لپاره د کارور پرزه جات برابرول او بشپړه خود کفا دستګاه وه . چې د خپل فعالیت په زمانه کې یې خپل تولیدات ان بهرنیو هیوادونو ته هم لیږلی . اوس بیا پر دي دستګا کار روان دي چې دوباره کارته چمتو شی .



د هلمند د اطلاعاتو او کلتور ریاست ودانی

کلتوری فعالیتونه

د هلمند ولایت د اطلاعاتو او کلتور ریاست . له لوری ځینی فرهنګی کارونه تر سره شوی دي چې یو هم په دې وروستیو کې د راډیو یې خپرو پیل دی . چې هره ورځ د ماښام له خوا یو ساعت خپرونه لری ورسره په څنګ چې د هلمند جریده ده چې په میاشت کې یو ځل خپریږی . خو اوس د اطلاعاتو او کلتور ریاست له لوری داسی د هڅی روانی دی . چې دا خپرونه پنځلس ورځنی شی . د اطلاعاتو او کلتور ریاست یو باب کتابتون هم لری . چې هره ورځ د مینه والو پر ومخ خلاص وی .

همدارنګه هغه لرغونی ځایونه چې پخوا څه زیانونه ورته رسیدلی وو اوس د اطلاعاتو او کلتور په پاملرنه بیا ترمیم شوی دی . چې یو هم په دې لرغونو ځایو کې د بست مشهوره لرغونی کلاده چې اوس هلته یو باب جومات جوړیږی .

د هلمند ولایت مطبعه ده چې هغه هم د امارتی ادارو هم پخپله د اطلاعاتو او کلتور د چاپ ستونزی حلوی

د هلمند ولایت د اطلاعاتو او کلتور په ریاست کې په هرو پنځلسو ورځو کې یوه ادبی غونډه جوړیږی . چې د قلم په نوم په دغه ادبی غونډه کې لیکوالان او شاعران خپلی لیکنی او شعرونه اوروی او بیا د راډیو له لاری په هغه ورځ خپریږی چې اوس د اطلاعاتو او کلتور ټول فنی . مسلکی پرسونل پنځه دیرش تنو ته رسیږی .



د هلمند ارغنداب وادی عمومی ریاست



د بست تصدی

اوبه او برېښنا

د هلمند د برق شبکه په دوه برخو "فني او اداري کې" همدا اوس فعال دي چې اداري برخه د محاسبې یعنې محصول او نورو څانګو کې کار کوي. او فني برخه کې د برق د ټول سیستم فعال ساتل دي.

د برق سیستم چې په شل کلن ناورین کې کوم زیان لیدلی وو اوس د اسلامي امارت په همکارۍ او پاملرنه، ترانسپر مرونه دوباره ترمیم د برق سیستم بیرته فعال. د برېښنا جریان په عادي ډول کار ورکوي. د هلمند ولایت د برق ستېشن لس میګاواټه دی خو اوس د پنځه میګاواټه برق څخه کار اخیستل کیږي او د دوراهي څخه تر ګرشك پورې د پایو د لیږلو کار روان دي او ورسره په څنګ کې یې د سنګین دلسوالۍ د برق د ویښ کار جریان لري. خو ورسره د برېښنا د جریان د څارنې لپاره نوکریوال فني مامور خپله دنده په ښه توګه پر مخ بیايي. د هلمند ولایت د برېښنا ټول جریان د کجکي څخه تامنیږي. دا بند اوس ۳۳ میګاواټه ظرفیت لري چې پرته د لښکرګاه له ښاره. ګرشك دوراهي او کندهار ښارته هم برېښنا ورکوي.

دا چې په ټوله سیمه کې د حوادثي اوږی له پلوه د ټولو خلکو ژوند ستونزمن دي او د تیلو ډېرو او مسکرو مصرف ګران تماميږي. په هلمند کې له دې پلوه د خلکو ستونزې یو څه کمې دي او د برېښنا له نعمت څخه برخمن دي. او د هلمند د اوبو د برېښنا ریاست د برېښنا د ویش لیست داسې برابر کړی. د کورونو لپاره یو کیلوات برېښنا ۶۰۰ افغانۍ حسابيږي او تر دې لوړ بیا په ۲۰۰۰ افغانیو محاسبه کیږي خو د دوکانونو او سوداګرۍ موسسو لپاره ۳۰۰۰ افغانۍ محاسبه کیږي.

د بست تصدی:

دغه دستګاه د ظاهرشاه په وخت کې د انګلستان له خوا جوړه شویده د دې تصدی لویه دستګاه څلورډوله تولید لري. یو دا چې هغه لوی ماشین چې د بندانۍ څخه پنبه جلا کوي، او پندورته وایي بیا دا پاکه پندانه چې غلبیلیږي او مغز یې جلا کیږي. بیا د تیلو یوې دستګا ته ورځي بیا پخت ورکول کیږي غوړي جلا کیږي او کنجاره جلا کیږي. چې هره دستګاه یې بیل نوم لري، یوه د غلبیل. بله د تیل کشي. او بله د لیتر په نوم یادیږي د پرسونل شمیر یې پخوا زیات وو. خو اوس د دې کارګرو شمیر تر ۲۸ ته لوړیږي بیا دغه ۲۸ کسه دوه شفه کار کوي یعنې مخکې له وخته او وروسته له وخته او پدې ډول د ورځې کار پر مخ ځي د خدای په فضل دغه فابریکه په شل کلن ناورین کې په ښه توګه له لوټ مار څخه وساتل شوه او دومره زیان یې نه دی لیدلی. خو اوس د اسلامي امارت په پاملرنه او همکاری اداري د اړتیا وړ پرزه جات د نمونې له مخې پاکستان ته لیږل کیږي او بیا هلته په هغه ډول پرزه جوړیږي تر څو دلته په ښه ډول کار ورکړي.

دغه فابریکه هره ورځ په عادي ډول خپل کار پرمخ بیايي. چې دغوړیو ورځنی تولید یې ۱۳ ټنو ته رسیږي او پندانه تر ۷۰ ټنو پورې رسیږي.





د هلمند ولایت مقام

حجاری او نجاری :

دا فابریکه په ۱۳۴۱ کال ماشین شوی ده . چې په هماغه لومړیو کلو کې په ښه ډول تولید عادی وو . او تریوې اندازې ددې فابریکی اکمالات هم په پوره توګه کیدل . خو کله چې انقلاب راغی . د دې فابریکی هم تعمیر او هم یې تولیدی ماشین الاتو ته زیان واوښت او په تولید کې کمښت رامنځ ته شوچې فنی او مسلکی مامورین هم یا په کډه له هیواده تلل . او یا هم په کور کښیناستل له اوږده ځنډه وروسته د اسلامی امارت په راتلو د بشپړه سولی په برقراری سره بیا دی فابریکی فعالیت پیل شو . او اوس اداری د حجاری او نجاری په دواړو برخو کې تولیدات کوی . چې حجاری برخه یوه لویه د ډبرو پریکولو دستګاه لری او د پالش له دستګاه وروسته د خلکو او سوداګرو د غوښتنی لپاره د سیز ډبری . غوری سیګریټ دانی غابونه او نور ډول ډول شیان جوړوی . د نجاری برخه بیا دوه ډوله کار کوی چې یو لوکس شیان جوړوی یا فرنیچر . او بله برخه کې بیا چپرکټ ، دروازه او نور شیان جوړیږی .

اوس دا دی د دی فابریکې ټول تولیدات بیا بازار ته وزی او ښه پریمانه سوداګر لری . دا فابریکې په هرات . کابل او کندهار کې نماینده ګی درلودی چې هلته یې هم دغه تولیدات بازار ته وتل ، چې اوس هغه نماینده ګی بیخی له فعالیته لویدلی او سوداګر مخامخ فابریکی ته مخه کوی . او هغه تولیدات چې پخوا یې د فنی . مسلکی پرسونل د زیاتوالی له کبله درلود اوس کم شوی دی او دا پرسونل اوس ۲۴ تنو ته رسیږی ، چې ذکر شوی شمیره د فابریکې په دواړو برخو کې په کار لګیا ده چې اوس د فنی پرسونل د زیاتوالی لپاره هڅه روانه ده چې د کار په هره برخه کې

ستونزی راکمی کړی . د باندنی خیریه ټولنه تر اوسه پدې خاطر مرسته نه کوی او دلیل دا وای چې دا یوه حکومتی فابریکه ده او له داسی فابریکې سره مرسته ممکن نه ده .

د مخابراتو سیستم :

د هلمند ولایت د مخابراتو ریاست بلکې ټول فعالیتونه یې په شل کلن ناورین کې بادوزی وو . او په هره برخه کې یې زیان لیدلی وو . خو د اسلامی امارت په راتګ او د مخابراتو وزارت د پاملرنی له مخی تر اوسه پوری درې سوه د نیمه اتومات تلیفون شمیرې فعالی شوی دی . چې په دې ډول د رسمی امارتی ادارو ستونزی تر یوې اندازې حل دي .

د هلمند ولایت له نورو ولایاتو سره د مخابری له لاری هره ورځ د سهار له ۷ بجو بیا د مازدیګر تر ۴ بجو پوری تماس لری او پدی ډول د اولس ستونزی تریوې اندازې حل دي .

پستی خدمتونه هم د ستونزو باوجود هره ورځ په عادی ډول د خلکو او اولس د ستونزو په کمښت کې دکار هڅه کوی . چې هم باندنیو هیوادونه اوهم د هیواد په دننه کې پستی خدمتونه په ښه ډول جریان لری . د هلمند ولایت د مخابراتو ریاست د تشکیل له مخی تر ۳۰ پوری فنی مسلکی غړی لری ، چې د دې تر څنګ یو شمیر خدماتی او قراردادی مامورین هم لری . د هلمند په ولایت کې دباندنیو هیوادونو سره د تماس کوم تلیفون سیستم تر اوسه نشته . خو اوس داسی پروګرام دی چې د مخابراتو د وزارت په همکاری د خلکو د ستونزو د لری کولو لپاره یوه کامیابه هڅه وشی

نوټ : د دې راپور په برابرولو کې زموږ له خبریال سره ترانسپورتی مرسته د پوهنی ریاست اداری مرستیال ملا عبدالباری احمد وردګ کړی وه .




## د صحابه کرامو هغه ډلی چې رسول کریم ﷺ د بتانو ماتولو لپاره نورو ځایونو ته لیږلی دی .

۱- رسول الله صلی الله علیه وسلم د حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه په مشري کې د غازیانو یو ډله د ( العزي ) بت د ماتولو له پاره ولیږله غزي هغه بت و چې قریشو یې تعظیم کاوه هغه حضرت خالد مات کړ .

۲- داراز رسول الله صلی الله علیه وسلم د ( مناه ) بت د ماتولو له پاره هم د غازیانو یوه ډله لیږلی وه .

۳- د مصر د فاتح عمرو بن العاص رضی الله عنه په مشری کې یې د غازیانو یوه ډله ( سواع ) نومي بت ته ولیږله دا بت د هزیل د قبیلی و او عمرو په خپل لاس مات کړ .

۴- د طی قبیل یو بت و چې ( فلس ) نومیده دا هغوی په خپل یوه غره کې له کانو څخه تراشلي و دی بت ته یې حضرت علی بن ابی طالب رضی الله عنه ورلیږلی و .

۵- د ( لات ) نومي بت له پاره یې هم څوك لیږلی وو چې لیږ وروسته به یې ذکر راشي .

دا دري بتان : عزی ، لات ، او بل د دریمی درجی وال منات ، د عربو په خورا سترو بتانو کې شمیرل کیږی . خدای " ج " وایي : افرایتم الات و العزي و منات الثالثه الاخری ... الایه .

ژباړه : ایا وینی تاسو لات ، عزی او د دریمی درجی وال منات ( یعنی دغه بتان بیخی بیکاره شیان دي ) سره له دې چې ټول عرب قبائل د دوی په پرستش راټول وو رسول الله صلی الله علیه وسلم بې لـه څه ډاره او خوفـه هغـه ټول ټوټه ، ټوټه کړل او یو شي یې هم پري نه ښودل .

۶- امام بخاری په باب المغازی کې راوړی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د جریر بن عبدالله رضی الله عنه پر مشري کې د غازیانو یوه ډله ولیږله جریر واي ماته رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل : الاتریحني من ذی الخلصه ؟ ما به له ذي الخلصه څخه په راحت نکړي ؟ جریر وایي زه له یو سل پنځوسو سپرو سره ولاړم او هغه مو مات کړ او دهغه خوا ته چې څو ك و هغه مو هم مړه کړل .

۷- د ثقیف قبیلی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خواست وکړ چې دوی ته خپل سرکش بت لات د دریو کلونو له پاره پریږدی او ندي ماتوي خو رسول الله صلی الله علیه وسلم انکار وکړ هغوی ډیر ټینګار وکړ چې اخر د یوه کال له پاره دی پریږدی او ندي ماتوي خو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغوی خبره نه منله . اخر یې د یوي میاشتی له پاره د پریښودلو خواست وکړ رسول بیا هم انکار وکړ او رسول الله صلی الله علیه وسلم ابوسفیان بن حرب او مغیره بن شعبه رضی الله عنها ولیږل څو هغه ونړوي هغوی دواړه ورغلل او د زیاتو خلکو په مخ کې یې لات ونړاوه . ابن القیم رحمه الله تعالی په زاد المعاد ۳-۶۰۰-۶۰۱ کې د ثقیب قبیلي د دي کیسی په اړه لیکی :

... د شرك هغه ځایونه نړول چې د طاغوتیانو مرکزونه وي ډیر ضرور دي . د هغو په نړولو خدای " ج " او رسول خوشاله کیږی او د شراب خانو او د فساد ځایو له نړولو څخه د دوی نړول اسلام او مسلمانانو ته ډیره ګټه رسوي . داراز که په قبرونو باندی خوني جوړي شوي وي او خلك یې عبادت کوي او د قبر څښتن ته د خدایی صفات ورکوي او له خدا " ج " سره یې شریك بولی په اسلام کې د دوی پریښودل ناروا دي او نړول یې واجب دي ...

۸- رسول الله صلی الله علیه وسلم طفیل بن عمرو الدوسي د دوس قبیلي بت ته ( چې ذوالکفین ) نومیده ورولیږه او هغه یې وسوځاوه .

۹- رسول الله صلی الله علیه وسلم د تبوك له غزا څخه حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه د ( ود ) نومي بت د نړولو له پاره ولیږه هغه هلته جګړه وکړه او هغه یې مات کړ .

دا د مو حدینو د امام او د ملحدینو د بتانو ماتونکي رسول الله صلی الله علیه وسلم تګلاره ده .

